a02



# دیوانِ





# اشرف خان هجری

مُرتبــــــــــــــــــــــــــــــــه

## همیش خلیل

تعداد: ــــــــــــــــــــ ۱۰۰۰ یو زر

قیمت: ــــــــــــــــــــ ۶ شپږ روپۍ

رومبے ځل مئ سنه ۱۹۵۸ء

شاهین برقی پریس پیښور ښهر کښې چاپ شو

# مُقدّمه

دَ اشرف خان هجرؔي د کلام څه برخه په رومبي ځل مشهور مستشرق میجر ایچ. جي. راورټي په "ګلشن روه" نوم یو کتاب کښ په کال ۱۸۶۰ء کښ سره دَ نورو ډیرو لرغونو او نومیالو پښتنو شاعرانو د کلام دَ څه لږے غوندے حصے ادبي دنیا ته پیش کړه. میجر راورټي په یو بل کتاب "سیلکشن فرام دی پوئٹري آف دی افغانز" کښ په رومبي ځل دَ یو څو پښتنو شاعرانو تعارف دَ مشرق او مغرب ادبي دنیا سره اوکړه. دغه کښ یو اشرف خان هجرؔي هم دے.

په "حیاتِ افغاني" نوم یو کتاب کښ هم دَ اشرف خان هجرؔي څه لږ ډیر ذکر شوے دے. ولے په دغه حقله دَ "حیاتِ افغاني" او میجر راورټي تر مینځه معمولي غوندے اختلاف دے. دَ "پښتانه شعراء" په رومبي ټوک کښ ښاغلي عبدالحيؒ خان حبیبي هم دَ اشرف خان هجرؔي مختصر غوندے ذکر کړے دے.

---

(۱) ښاغلي حبیبي دَ اشرف خان هجرؔي دَ آخرنۍ ګرفتارۍ کال سنه ۱۰۹۳ھ مطابق سنه ۱۶۸۲ء ښودلے دے. ولے تاریخ مرصع کښ سنه ۱۰۹۳ھ مطابق سنه ۱۶۸۱ء

(په بله صفحه)

دَاشرف خان هجری دغه موجوده دیوان ما دَ درېو قلمی نسخونه مرتب کړو. اوله نسخه ماته دَ کرهي کپوره (مردان) دَ ولی محمّد خان سابق ایم. ایل. اے صوبه سرحد نه، دویمه دَ "ادبی ټولی پېښور" دَ لائبرېرۍ او درېمه نسخه دَ دوست محمّد خان کامل مومند نه چه هغه دَخان بهادر محمد رفیق خان خټک مرحوم سکنه ګنبت (ضلع کوهاټ) نه راوړے وه. ماته په لاس راغلی. دغه درېواړو نسخو کښې دَ خدائے بخښلی خان بهادر محمد رفیق خان خټک نسخه زیاته صحی او مکمله وه. باقی دوه نسخے نیمګړے وے. زه دَ مرحوم خان بهادر محمد رفیق خان خټک، نصرالله خان نصر، ولی محمد خان او خصوصًا دَ دوست محمد خان کامل مومند چه دَ اشرف خان هجری دَ ژوند په حالاتو کښې زما رهنمائی اوکړه. دَ بنو پیرزوینو او ادبی مهم کښې دَ مرستو او داد کېږے شکر ګذار یم.

---

لیکلی دے. علاوه دَ دے نه حبیبی صاحب غالبًا دَ هجری دَ دغه شعر له مخه چه:

نهه کاله ګذشته دالسمکال کړے ؛ چه سپهرېم سرکښ په ګوښمال دے

دَ هجری دَ قید و بند میعاد لس کاله ښودلے دے حالانکه په کال ۱۰۹۲ه کښې دَ هغه ګرفتاری او په کال ۱۱۰۶ه کښې هغه وفات شویدے او دَ دغه خبرے دَ حقیقت نه چه دَ دغه ګرفتارۍ نه پس هغه باقی ټول ژوند په زندان کښې تېر کړے دے. عن چه هم په جیلخانه کښې وفات شویدے نو دا خبره څرګنده شوه. چه هجری څوارلس کاله تاریخی بندی وو.

حبیبی صاحب هجری دَ خوشحال خان مشر ځوئے بولی. حالانکه هجری دَ خوشحال خان دویم ځوئے دے. دَ هجری دَ مشر ورور نوم اکبر خان وه؛

دغه دیوان کښې د اکرم[1] درې غزلونه او قلندر[2] یو غزل لکه څنګه چه په قلمي[3] نسخه کښې شامل دي. ما هم شامل کړل. یوه کومه ډېره مهمه خبره دغه دیوان کښې چه د ما مخه داده. چه اکثر خلق دا شعر ــ

زه[4] په بند د اورنګ نه یم چه به خلاص شم
بندي کړے شیخ رحمکار د میرې کاکا یم

خوشحال خان خټک سره منسوب کوي. حالانکه دا د اشرف خان هجري شعر دے په "تحفت الاولیاء" کښې قاضي میر احمد رضواني نه هم دغه غلطي شویده. او دغه شعر ئې خوشحال خان خټک سره منسوب کړیدے. حالانکه د خوشحال په ټول کلام کښې د دے شعر هیڅ پته نه لږي. د دغه شعر نه علاوه هجري د کاکا صاحب (کستیرګل) په عقله نور شعرونه هم

---

[1] اوګورئ په صفحه ۳۸۵ دویم غزل او په صفحات ۳۲۹ او ۳۳۴ په صفحات ۳۸۵ او ۳۰۳ د اکرم د غزلونو په ردیف او قافیه د هجري دوه غزلې په صفحات ۳۸۴ او ۳۸۸ هم شته. داسې معلومیږي چه اکرم او هجري دا غزلې د یو بل په جواب کښې لیکلي دي.

[2] اوګورئ صفحه ۹۷ د قلندر د دغه غزل په ردیف او قافیه هم هجري په صفحه ۹۹ یو غزل لیکلے دے. د اکرم او قلندر د غزلونو نه علاوه په صفحه ۳۸۹ دویم غزل هم د چابل شاعر دے ولې داسې معلومیږي چه دا هم د اکرم دے.

[3] د خان بهادر محمد رفیق خان خټک قلمي نسخه.

[4] اوګورئ صفحه ۴۰۹.

وشلی دی۔ لکه :۔

میږی کله په لامبو اوځی لـه دبه
مګر مل یم په همت زیږے کمتیر شی

یا :۔ دَ زیږی کاکا په کور لاسو نه کیږده ؛ قدیمی مهر دِ شته که اوس بد لګته

دَ کاکا صاحب دَ یو ځوئے میاں ضیاءالدین او هجری تر مینځه ناچاکی وه۔ او دَ هغے وجه دا بیانیږی۔ چه میاں ضیاءالدین دَ اشرف خان هجری خلاف دَ بهرام خان حمایت کولو۔ په دغه وجه دَ میاں ضیاءالدین او اشرف خان هجری سره څه لو کښ نه لګیده۔ هجری دَ چنیلے گرفتار ده وجه دَ میاں ضیاءالدین سره دَ دښمنی په وجه دَ کاکا صاحب بدعا ګڼله۔ په دغه وجه دَ کاکا صاحب سره دَ عقیده تنده او دَ هغه په بزرګه دَ پخے عقیدے له مخه دَ هغه په کرامت دَ قائیلنو ب اقرار کوی

تقریباً دَ هجری دَ قید په اتم کال خوشحال خان خټک په کال سنه ۱۱۰۰ ه مطابق سنه ۱۶۸۹ء کښ وفات شو۔ هجری قتیل پلار دَ مرګ نه په زندان کښ خبر شو۔ دَ پلار په مرګ ئے دا مرثیه او لیکله۔ او په آخری شعر کښ ئے دَ هغه دَ مرګ تاریخ را او یستو :۔

هغه کال دَ هزیمات شراے خاطره ؛ چه بهتر دِ پښتانه په نام خټک وه

سه[1] ځینو کتابونو کښ دَ میاں ضیاءالدین او اشرف خان هجری دَ اختلاف وجه دا بیانیږی۔ چه دَ بهرام خور په میاں ضیاءالدین واده وه۔ هجری او بهرام خان ئے دوه ناسکه رونړه بنودلی دی۔ حالانکه دا خبره غلطه ده۔ هجری او بهرام خان دَ یو مور ځامن وو۔

سه[2] او کوری صفحه ۵۲۷ ۔

ذات وبود ئے کہ خټک وه دا دروغ نه دی ؛ ولے کُل پښتون تنه دے مردمک وه
دَ وفات تاریخ ئے ماله عقله اوغوښت ؛ په دا رنګ ئے دَ جواب شان ومسلک وه
میهنه دویمه خوراته ویشتم وه ؛ چه ئے روح په جمعه وړے پاک ملک وه

خاکی دا رما ئے په هوس دَ ارم پرے ایښ
غین و قاف ئے په عدد سال دَ هلک وه
۱۱۰۰ ھ

اشرف خان هجری دَ خټل پلار خوشحال

## دژوند حالات:-

خان غوندے زیات عمر دَ بنګښو او یوسفزو سره په جنګونو او د مغلو په خدمت کښ تیر کړے وه - دَ پښتو دَ بڼ دا بلبل دَ لنړی دریاب په شاعرانه ماحول کښ دَ عظیم پښتون او پښتو ژبے پلار خوشحال خان خټک کوه سرا ئے اکوړی کښ په کال ۱۰۶۴ ھ مطابق ۱۶۳۵ء کښ زیګیدلے دے - هجری دَ خوشحال دویم خوئے وه - ده نه وړاندے دَ خوشحال خان روښے اولاد اکبر خان وه - چه دَ پیدائش په اوومه ورځ مړ شو - دَ خوشحال خان په ټولو ځامنو کښ یو هجری وه - چه ئکه دَ پلار دَ ښو خوبو مالک وه - اګر که دا اوصاف او خوبے دَ خوشحال خان خټک دَ علمی، سیاسی او ادبی قابلیت دَ معیار نه وے - ولے بیا هم په دغه حقله په نسبت دَ نورو رونو اشرف خان هجری خپل پلار ته نزدے ضرور وه - دَ یو ښه شاعر او عالم فاضل نه علاوه هجری دَ خپل وخت یو زړه ور او ځیګر ور سردار ګڼلے شی - قوم کښ په نسبت دَ اکثرو رونو دَ

لـہ ۲۸ د ربیع الثانی دَ جمعے ورځ سنہ ۱۱۰۰ ھ مطابق ۲۰ د فروری سنہ ۱۶۸۹ء

مجری اثر او رسوخ هم ډیر وه۔ او پوره اعتماد ئې پرې کړلو۔ مجری فطرتاً یو بهادر او مړنے انسان وه۔ او دا دَ هغه دَ جنګی فطرت تقاضا وه۔ چه دَ دوه نسو کلونو په عمر کښ دَ خپل نیکه بهادر خان ( دَ خوشحال خان نیکه ) سره په کال سنه ۱۶۵۲-۵۴ء کښ دَ بنګښو دَ یو سردار شیر محمد خان خلاف دَ محال تری او بولاق په جنګ کښ شریک شو۔ او چه څه وخت بنګښ په ماتے شول۔ نو دَ خپل عسکری فطرت نه مجبور مجری ورپسے دَ هلے او تعقب اراده اوکړه۔ ولے خپل نیکه هغه دَ دغه ارادے نه واړولو۔

تاریخ نه معلومیږی۔ چه خټکو محض دَ خپل ذاتی اقتدار او منصب حاصلولو پیش نظر صرف دَ هغه وخت دَ حکومت خوشحالولو دپاره اکثر بے ګناه وینے بیولے دی۔ دَ پښتون دا قامی المیه محض دَ خانی او سرداری خواهش او غوښتنه وه۔ ولے دَ قدرت کارونه عجیبه او انسانی پوهے نه بالاتر وی۔ او دَ ځینو کارونو نتیجه ئې دَ انسان دَ توقع خلاف را اوځی۔ او آغاز سره ئې چه کوم توقعات تړلی وی، انجام تر ناآشنا وی۔ هم دغه شان چاته معلومه وه۔ چه دَ خټکو دَ سردارئ او مشرئ دَ غم خواهش به په یو لسمه صدئ مجری کښ دَ ټول پښتون قام ..........

..........

..........

دوباره ولے دَ خپلو ورونو سعادت خان او بهرام خان په معاونت او خپل پلار خوشحال خان خټک په قیادت کښ اول

حُل په کال ۱۶۶۸ء کښې اشرف خان هجری دَ یوسفزو دَ باغیانه سرګرمو خلاف نوُره را اوویسته . او دغه شان اشرف خان هجری دَ خپلې مشورې او سرداری دَپاره خوخوځله دَ مغلو دَ خوشحالولو کوشش اوکړو . ولې قدرت ته په دې منظوره چې اشرف خان هجری او خوشحال خان خټک دِ پخپلو مقصدونو کښې کامیاب شی . قدرت دَ مغلو او دَ خوشحال ترمینځه اختلاف پیدا کړل . حبیبی صاحب دَ دغه اختلافاتو وجه دا بیانوی . چه څه وخت اورنګزیب عالمګیر بادشاه شو . نو خپل پلار شاجهان ئے قید کړو او ورونه ئے مغلوب کړل . خوشحال خان دَ شاجهان په حقیقی او معتمد دوستانو کښې وه . سیاسی پوزیشن ئے هم مضبوط وه . قوم ورپسې وه . یقیناً اورنګزیب ته ترے خطره وه چه که خوشحال خان دَ خپل دوست شاجهان دَ آزادولو کوششونه شروع کړی . نو دَ هغه دَ بادشاهی دَ ختمیدو غالب ګمان وه . هم دَ دغه خطرے پیش نظر وجے دَ دے نه چه خوشحال خان دَ شاجهان دَ آزادولو خیال اوکړی او یا په دغه حقله څه عملی قدم پورته کړی . اورنګزیب دَ خوشحال او شاجهان دَ نورو نږدو دوستانو او خواخوږو دَ مغلوب کولو اراده اوکړه . لکه څنګه چه تاریخ ښئی . اورنګزیب یو سیاستدان او موقع شناس بادشاه وه . هغه چه دَ خوشحال خان دَ سیاسی طاقت اندازه اولګوله . نو دَ یو خونی انقلاب دَ خطرے پیش نظر ئے ځان دَ دے چه خوشحال خان سره ئے طاقت ازمائی کړے وے ، دَ حکمت عملی نه ئے کار واخستو .

روپیے ئے خوشحال خان دریاد ته دا او بللو. او دغه دوران کښ شاه په شاسے ځ دغه ټول خپلوان په خلعتونو حکومت کښ د لویو لویو منصبونو، خانئ او مشرئ په وعدو د هغه خلاف کړل. د بغاوت او انقلاب خطره پاتے نشوه. نو خوشحال خان ئے پیښور کښ گرفتار کړو او دهلی ته ئے اولیږلو. د خوشحال خان د گرفتارئ نه پس پښتنو په یو اتفاق د هغه د راخلاصولو دپاره د مغلو خلاف د مسلح اقدام فیصله اوکړه. ولے خوشحال خان خټک هغه منع کړل.

ولے کامل صاحب د مناغلی حبیبی د خوشحال خان خټک د گرفتارئ دغه پورتنو وجوهاتو سره متفق نه دے. او د خوشحال خټک د گرفتارئ اسباب وائي. چه په کال ۱۰۷۵ھ کښ چه وخت چه اورنگزیب عالمگیر سید امیرخان خوافی د کابل صوبه دار مقرر کړو. نو څه موده پس ئے اورنگزیب ته د یو ملاقات په دوران کښ د ممانعت باج راهداری د نفاذ نه وړاندے د ځینو زمیندارو د گرفتارئ متعلق اووے. حقیقت کښ دغه د خوشحال خان د گرفتارئ دپاره یو چال وه. ځکه چه د عام محصول د معافئ په وجه اولس ته فائده رسیده. ولے د دغه حکم په وجه د زمینداروا و جاگیردارانو د محصول په ذریعه آمدنی ختمه شوه او چونکه خوشحال خان هم د مدک اکوړی د زمانے راسے د چپلے علاقے د مال په اړه و راوړه محصول اخستو. نو ضروری وه. چه د

سلہ اوکوړیه " خوشحال خان خټک " صفحه ۸۵

عام محصول دَ معافۍ دَ حکم نه پسته دَ خوشحال خان په آمدنۍ هم اثر
پریوتی۔ او دَ دغه حکم دَ نفاذ نه پسته دَ زمیندارو او جاگیردارو خفگان
یوه فطرتي خبره وه۔ ولې سره دَ دغه حکم دَ نفاذه داسې هیڅ
ثبوت نشته چه خوشحال خټک دَ دغه حکم دَ نفاذ نه وړاندې
یا روستو دَ دې خلاف دَ څه عملي قدم پورته کولو کوشش کړې
وی۔ بلکه دَ دغه حکم دَ نفاذ نه پسته هم دَ ده دپې غوندې دَ مغلي
حکومت وفادار وه۔ او هم دَ دغه وفادارۍ او څه پخوانۍ عداوت
له کبله دَ حکومت مخالفو یوسفزو، آپریدو او اورکزو سره به
په جنګ وه۔ سید امیرخوافي دَ خوشحال دَ ګرفتارۍ دا چال صرف
دَ خوشحال او میرزا عبدالرحیم ترمینځه دَ خفګان په بنا او دَ خوشحال
خان ترونو بهادرخان او فیروزخان سره دَ خپل سازش کامیابولو
په غرض کړې وه۔ عبدالرحیم هم سید امیرخوافي ته ویلي وو۔ چه
ترڅو هغه دَ سر یو خو سړي ګرفتار نکړي دَ هغه صوبه داري قایمه
نشي پاتې کیدې۔ او دې سره دَ خوشحال خان ترونو سید امیرخان
خوافي ته دَ سردارۍ په سودا کښ دَ پنځوس زرو روپو وعده
اوکړه او شمشیرخان يې ضامن شو۔

تاریخ مرصع کښ دَ افضل خان دَ قول مطابق سید امیرخان
خوافي اورنګزیب ته دَ چا خاص سړي ګرفتارۍ نه وه نیوه
کړې، بلکه دَ ګرفتارۍ دَ حکم دَ نفاذ دپاره يې دَ زبردستۍ
عمل ضروري کړو۔ او بادشاه نه يې دَ زمیندارو خلاف دَ کاروائۍ
پعقله اجازت واخستو۔ او خپلې صوبې ته رخصت شو۔ سید امیرخان

خوانی چه کوم وخت پیښور ته رااورسیدو۔ نو خوشحال خان ئے د مشورے په بهانه د سرائے اکوړی نه پیښور ته راوبللو۔ خوشحال خان چه په دویمه ورځ پیښور ته راورسیدو۔ نو دارسیدو سره ئے صوبه دار ته اطلاع ورکړه۔ ولے خوشحال خان ئے په دے خبره ټال کړو۔ چه صبا دربار کښې حاضر شه۔ دغه شان درے ورځے تیرے شوے۔ ولے دربار او نه لګیدو۔ د صوبه دار یو ما تحت "شیخ ګجرات" خوشحال خان راوبللو او ورته ئے اووے۔ چه ږ و مې ماله مشورے د پاره راشه۔ پسته بیا صوبه دار له ځه۔ خوشحال خان د خپل پاک زړه له خاطره بے خطره هغه له ورغلو۔ ولے هلته سرکاری سپاهیانو هغه ګرفتار کړو۔ د خوشحال خان ترونه چه دغه سازش کښې د صوبه دار سره شریک وو، کافی انعام او خلعتونه ئے واخستل۔ خټک د خوشحال خان د ترونو د قتلونو د پاره پورته شول۔ ولے خوشحال خان په یو پیغام کښې د دے اقدام نه هغوی منع کړل او په امن د اوسیدو تلقین ئے ورکړو۔ دوه میاشتے پیښور کښې وه۔ او پس د دوؤ میاشتو نه ئے هندوستان ته اولیږلو۔

بهرحال د خوشحال خان د ګرفتارئ وجوهات او اسباب هرڅه چه وو۔ ولے په دے خبره ټول متفق دی۔ چه خوشحال خان ګرفتار شو۔ اشرف خان هجری چه څه وخت د خپل پلار د ګرفتارئ نه خبر شو۔ نو د خپل پلار د مرضئ خلاف او په دغه حقله د

هغه سره دَ غه صلاح مشوره شه نه بغير دَ خوشحال خان دَ خلاصي د پاره سيد اميرخان خوافي پسے چه د غه ورځو کښې دَ کابل صوبه دار وه - سفارش د پاره کابل ته لاړ - ولے پخپله دَ دے چه هغه دَ اشرف خان هجري سفارش منظ وے - اپوته ئې هغه هم هلته گرفتار کړو - بل خوا دَ محمد آمين خان په مشوره اورنګزيب دَ خوشحال په ضمانت دَ خلاصي د پاره راضي شوے وه - ولے څه وخت چه سيد اميرخان خوافي دَ اورنګزيب دَ دغه فيصلے نه خبر شو - نو هغه دَ سياسي مصلحت په بنا دَ خوشحال خان خټک په ضمانت دَ خلاصي مخالفت اوکړو - ولے دَ پلار او ځوے دواړو په گرفتارئ دَ خټکو علاقه کښې دَ اري گرئ آثار پيدا شوي وو - بدامني خوره وه - هم دغه وجه وه - چه سيد اميرخان خوافي مصلحتاً دَ اشرف خان هجري رهائي موزونه اوګڼله - دے نه علاوه دَ سيد اميرخان خوافي دا خيال وه - چه دَ خوشحال خان په گرفتارئ چه پښتنو کښې دَ غليلي کوم آثار ښکاره شوي وو - دَ اشرف خان هجري په خلاصے به تر څه حده کم شي - نو دَ هجري دَ خلاصے دغه يوه وجه کيدے شي -

دغه کشمکش کښې محمد آمين خان بوځل بيا دَ خوشحال خان دَ خلاصي د پاره کوشش اوکړو - ولے اورنګزيب ورته په جواب کښې اووے - چه که چرے خوشحال خان خپل بال بچ دَ يرغمل په طور هندوستان ته راولي - نو هغه به پريښودلے شي - دَ خلاصے دَ دغه شرط نه چه خوشحال خان خبر شو - نو هغه سعادت خان

او میر باز خان ته ئې چه دغه ورځو کښ دهلي کښ دَ خوشحال خان
دَ خلاصی په کوششونو کښ وو، او وئیل - چه دَ هغه (خوشحال خان)
بال بچ دِ دَ سرائې اکوړی نه بلخوا منتقل کړی - چه داورنګزیب
دَ حکم تعمیل اونشی - دَ خوشحال خان دَ وینا مطابق سعادت خان
او میر باز خان دَ دهلی نه راستانه شول - چه دَ خوشحال خان
اولاد محفوظ کړی - دَ کال سنه ۱۰۷۶ه زمانه وه - چه دَ خوشحال خان
بال بچ دَ هغه اوښی حمزه خان دَ یوسفزو علاقے ته محفوظ اورسول.
او هلته په سیکری نوم ئې کلی کښ چه دَ کاټلنګ او جمال ګړهی په
مینځ کښ پروت دے میشته کړل. یوسفزو حیثیت قوم دَ پښتونولئ
دَ جذبے لاندے باوجود دَ خوشحال خان دَ دښمنئ چه دَ هغه دَ بال
بچ قوم قدر او عزت اوکړو. دَ یوسفزو دَ لوئې حوصلے ، صبر،
پښتنی ننګ او دور اندیشئ یو بهترین مثال دے. دغه وخت
چه دَ خوشحال خان اولاد سرائې اکوړے پرېښے وه. او یوسفزو علاقے
ته لاړ وه. یوسفزو او ختکو په شریکه سره دَ خوشحال خان په
مخالفینو په اکوړی حمله اوکړه او اکوړے ئې لوټ کړو. دغه دوران
کښ اشرف خان هجری دوباره ګرفتار شو. ویلے شی چه اول ځل
په کابل کښ څه وخت اشرف خان هجری ګرفتار شوے وه. لو دَ
خوشحال خان دَ یو دوست دلیر همت په ضمانت سید امیر خان
خوافی پرېښے وه. لوځکه دَ اشرف خان هجری په دوباره ګرفتارئ
هغه دَ سید امیر خان خوافی خلاف دَ جنګ او بغاوت تیاری
شروع کړے وے او بے دَ دے نه چه دلیر همت خپلے ارادے ته

عملي شکل ورکړے وُ ے. سید امیرخان خوافي مجري بیا پرېښے وه. دَ خلاصي نه فوراً پس هغه سرائے اکوړي ته راغلو او دَ خټکو دو تو خونیه و واپس راو ستلو انتظام ئے اوکړو.

تقریباً دوه کاله پس په کال ۱۶۶۶-۶۷ء کښې چه خوشحال خان لا په هندوستان کښې نظر بند وه. یوسفزو دَ بهاکو خان او مُلا چالاک په قیادت کښې دَ مغلو خلاف بغاوت اوکړو. مُلا چالاک دَ بهاکو خان دَ هدایاتو مطابق سره دَ پنځو زرو یوسفزو دَ لښکره دَ اباسین نه پورے وتو. او دَ ضلع هزاره په یوه قلعه ئے حمله اوکړه. کامل خان چه دَ اټک په حفاظت دَ حکومت له خوا مقرر شوے وه. او کوم وخت چه دَ حکومت له خوا دَ باغیانو خلاف دَ جنګ احکامات ورته راورسیدل. نو دَ باغیانو خلاف دَ مزید امداد د رارسیدلو نه وړاندے ئے دَ باغیانو خلاف پیش قدمي اوکړه. دغه وخت اشرف خان مجري او ګکهړ سردار مراد قلي خان سره دَ خپلو خپلو سرو دَ سرکاري فوځ دَ امداد دَ پاره راورسید. اوځه وخت چه باغیان او سرکاري فوځونه په هارون کوډره سره مقابله شول. نو یوسفزي په ماتے شول. او تقریباً دوه نیم زره کسان ئے قتل، ډوبل او ګرفتار شول. دَ اباسین یوړل تاریخ لیکي. چه کامل خان دَ درے سوو قتل شوو پښتنو سرونه دَ تنه پریکړل او کله مینارے ئے ترے جوړ کړو.

دَ مغلو او پښتنو دَ کشمکش په نتیجه کښې هغه وخت چه په کال ۱۶۷۲ء کښې دَ خیبر په فتح کښې ایمل خان مهمند مغلو ته شکست ورکړو.

نو حکومت دَ لاهور دَ ګورنر فدائي خان دَ کمان لاندې صوبه دار محمد آمین خان دَ زیاتې کمک دپاره پیښور ته راولیږلو. او څه وخت چه فدائي خان پیښور ته راورسیده. نو اشرف خان هجري ورسره دوه ځله اولیدل. بلکه پیښور ته دَ رارسیدلو نه وړاندې څه وخت چه فدائي خان سره دَ نوښهره اباسین نه راپورې وتو. نو په خیرآباد کې هجري استقبال اوکړو. او تر پیښوره ورسره جلب کښې لاړ. فدائي خان دَ مغلو دَ شکست پحقله دَ اشرف خان هجري سره څو ځله اولیدل. نشي ویلې کیدې چه هجري فدائي خان ته څه اووې. ولې نتیجه کې دَ مستجاب خان مومند قتل شوه، چه دَ خیبر په جنګ کښې دَ ایمل خان خلاف سره دَ خوشحال خان ختکه ملګرې وه.

دَ خیبر په جنګ کښې دَ شکست خوړلو نه پس محمد آمین خان هندوستان ته لاړو. دَ هغه په زړه کښې دَ پښتنو دَ بدل اخستلو لمبې بلې وې. هم دغه وجه وه. چه څه موده پس محمد آمین خان بادشاه ته په پښتنو دَ دوباره حملې کولو دپاره اووې. ولې بادشاه پرې ځان کوڼ کړو. دغه دوران کښې مهابت خان دَ کابل ګورنر مقرر شو. مهابت خان هم پښتنو ته په زړه سپین نه وه. او دَ بدل اخستلو جذبه ئې زړه کښې لرله. ولې پځائې دَ جنګ هغه دَ حکمت عملي نه کار واخستو. او پیښور ته رارسیدلو سره هغه په یو خط کښې خوشحال خان سره دَ دوستئ کولو اظهار او کوشش اوکړلو. ولې خوشحال خان دَ

مهابت خان په زړه پوهه وه - او د مهابت خان دغه خواهش بلکه چال ئے کامیاب نکړو - او د هغه د دوستۍ نه ئے صفا انکار اوکړو - او چونکه د اورنګزیب د بند نه د خوشحال خان په راخلاصولو کښ د مهابت خان هم لاس وه - هغه د مهابت خان احسان مند وه - او هغه ئے خفه کول هم نه غوښته. ولے دغه وخت د مغلو او پښتنو تعلقات ډیر زیات خراب شوی وو - په دغه وجه نه خو خوشحال خان په مهابت اعتبار کولے شو - او نه د احسان مندۍ په وجه د هغه خلاف کیدلے شو. بله دغه وجه وه - چه خوشحال خان د هغه نه پیښوره اولاړه نه لاړ - مهابت خان د خوشحال خان په بے پروائۍ او بے توجهۍ غصه شو - او د خوشحال خان پریشانه کول ئے شروع کړل - دغه وخت کښ اشرف خان هجری په خیرآباد کښ د مهابت خان سره ملاقات اوکړو - ولے د خوشحال خان په وجه د مهابت خان زړه هجری نه هم صفا نه وه - خو د سیاسی تقاضو له مخه مهابت خان هجری د خان سره نزښتی نه بوتلو. او دغه وخت ئے چه بخښولو نو مهابت د هغه نه د دے خبرے ضمانت راخستو چه هغه به خوشحال خان په خپله علاقه کښ نه پریږدی - ولے سره د دے مهابت خان بیا هم د اشرف خان په کار کښ ادو مطمئن نه وه - صرف د پلار خلاف د هغه نه په ضمانت اخستلو د مهابت خان سود او نشوه - هم دغه وجه وه چه د خوشحال خان د تنګولو او ترټولو د پاره

مهابت خان دَ هغه دریم ځوئے بهرام خان سره ساز باز شروع کړو۔
بهرام خان چه دَ خانئ او سردارئ اوږے وه دَ مشرئ حاصلولو دَ
پاره دَ خپل پلار خوشحال خان او اشرف خان هجرئ مخالف شو۔ بهرام
خان مهابت خان ته دا یقین ورکړو۔ چه هغه به دَ پلار او ورور
خلاف دَ هغه دَ هر حکم تعمیل کوی۔ حتیٰ تر دے چه که ضرورت شو
نو دَ دوارو په قید ولو به هم صرفه اونکړی او نه به تر ے خان
اوژغوری۔ مهابت خان هم هغه په ملا اوټپولو۔ او دَ پلار او
ورور خلاف دَ هر قسم امداد ورکولو وعده ئے ورسره اوکړه۔
هم دغه وجه وه چه دَ مغلو او خوشحال خان ترمینځه کشمکش
زیات شو۔ حتیٰ چه دَ مغلو په لمسه بهرام خان دَ خپل پلار او ورور
اشرف خان هجرئ خلاف په کال ۱۰۷۳ھ کښ څو څو ځله جنګونه
هم اوکړل۔ ولے اکثر به خوشحال خان کامیاب وه۔ دغه معرکه کښ
دَ کامیابئ نه پس خوشحال خان کوهاټ ته لاړ۔ لنډه دا چه باوجود
دَ خوشحال خلاف دَ هغه ځامن لمسولو اودَ دریا خان او ایمل خان
سره دَ دوغ دَ کوششونو مهابت خان دَ بادشاه دَ خواهش مطابق
په پښتنو کامیابی حاصله نکړے شوه۔ بلکه بادشاه پخپله دَ مهابت
خان په ناکامئ دَ هغه نه خفه شو۔ او دَ هغه ځائے ئے دَ پښتنو
خلاف دَ زور آزمائی دپاره شجاعت خان رعد انداز بیګ رالیږو۔
خوشحال خان دغه وخت دَ مغلو دَ دوستئ نه مکمل طور مایوسه
شوے وه۔ بلکه دَ قید په دوران کښ هغه یوسفزو سره دَ صلحے او
روغے پخقله دیر فکر کړے وه ــ او یوسفزو سره دَ دوستئ

او مغلو نه د انتقام اخستلو فیصله ئے کړے وه. یوسفزی چه
په مړانه او بهادری کښی د بوستان حیثیت خاوندان دی. د
اکبر بادشاه نه ئے را واخله د اورنګزیب تر وخته د مغلو خلاف
جنګیدل. چه مغل ترډیره زیات په تنګه راغلی وو. وے د اټک
د فوجدار کامل خان سره د کال ۱۶۶۷ء په انقلاب کښی چه
یوسفزو کوم شکست خوړلے وه. په هغے د یوسفزو عسکری
قوت ډیر کمزورے شوے وه. هم دغه وجه وه چه د خپل
انتقام اخستلو د پاره څه وخت چه خوشحال خان د سوات نه د
مندړو علاقے ته را اورسید دلو یوسفزو او مندړو شریک
فوځ تیار کړو. او د خوشحال خان د کمان لاندے شهباز ګړه سره
د مغلو مقابله ئے اوکړه. دغه جنګ کښی تقریباً څلویښت مغل
قتل شو.

دغه نه پس په کال ۱۶۸۰ء کښی د بنګښو نه د انتقام اخستلو
په خاطر تقریباً اووه زره خټک جمع شول. د یوے دستے کمان د
اشرف هجری خوئے افضل خان ته حواله شو. افضل خان د بنګښو
په علاقه حمله اوکړه او د شادی خیلو (کوهاټ) درے قلعګانے
ئے ماتے کړے. په قلعه کښی محصور خلق څه قتل او څه اونیولے
شول. او چه کوم او تښتیدل هغه د ډو دے په قلعه کښی چه یوه
اهمه مورچه وه، پټ شول. خټکو په قلعه حمله اوکړه او د کافی مقابلے
نه پس د قلعه دروازه ئے ماته کړه. دغه حادثه کښی فردے اته
شپږ کسان قتل شول.

د دوړے د جنګ نه څه موده وړاندے د خوشحال خان او اشرف خان هجری تعلقات خړ شول. د خوشحال خان او اشرف خان هجری ترمینځه د دغه تعلقاتو د خړیدو وجه دا غلط فهمی، بیا نیږی. چه خوشحال خان د هجری د صلاح او مشوره نه بغیر د ځینو نورو ځامنو سره محال تری او بولاق ته لاړ. د دغه غلط فهمی په وجه د پلار او ځوئے تعلقات خراب شول. عن تردے چه د دواړو ترمینځه مقابلے هم اوشوے. وئیلے شی چه کوم وخت خوشحال خان د لاچی په قلعه د اشرف خان هجری سری محاصره کړل. نو هجری خپل ځوئے افضل خان د محصورینو د خلاصی او خوشحال خان نه د خپلو غلطو د معافئ په غرض اولیږلو. د محال تری او بولاق ځینو سپین ږیرو هم د پلار او ځوئے (خوشحال خان او هجری) اختلاف د خپل زیان او تباهئ باعث اوګڼلو. د دواړو ترمینځه د صلحے په غرض ئے خوشحال خان ته یوه جرګه اولیږله. جرګے د پلار او ځوئے ترمینځه صلح اوکړه. هجری معافی اوغوښته او خوشحال خان هغه معاف کړو. د دغه دوران کښ خوشحال خان نظام پور ته لاړ. وړے لږه موده پس څه وخت چه بنګش د ترین خان مخالف شو. نو امیر خان (میرمیران) صوبیدار اشرف خان هجری ته ترین خان سره د مرستے حکم ورکړو. ترین خان سره د مرستے او ملګرتیا په غرض څه وخت چه هجری د نظام پور په علاقه تیریدو. نو هغه خپل ځوئے افضل خان خوشحال خان ته د خپل ملازمت په سلسله کښ د صلاح مشوره او بخپله د پلار سره

دَملاقات دپاره دَ اجازت غوښتلو په نیت اولیږلو. ولې مجری ته دَ خفکان په وجه پلار هغه ته دَ ملاقات اجازت ورنکړو. کم وخت چه افضل خان دَ نیکه نه راستون شو. او پلار ئې دحالاتو نه خبر کړو. نو مجری دَ خوشحال خان سره دَ ملاقات نه بغیر دَ ملازمت او ترین خان دَ امداد په خیال شادی پور پله روان شو. دَ مجری دَ دروانی نه پس افضل خان بیا نیکه پسې نظام پور ته لاړ. دغه وادخوشحال خان دَ مشرئ پټکے افضل خان ته په سر کړو. او ورته ئې او وئے چه "ستا پلار پخپله خوښه سردار شوے دے. حالانکه دَ سردار جوړولو اختیار ما ته دے. او ما ته سردار مقرر کړے". دَ سردارئ پټکے په سر افضل خان دَ نیکه نه راواپس شو. او خپل پلار سره دَ نیلاب په غرونو کښې یوځائے شو. افضل خان دَ خپلې سردارئ ټوله قصه پلار ته بیره کړه. مجری چه واورېده. ډیر خوشحال شو. او افضل خان ته ئې او وے چه "دا پټکے دَ تبرک په طور اوساته"

چه مغل تنګ شو نو دَ صلحې او روغې په نیت ئې دَ خوشحال خان سره خبرې اترې شروع کړے. بهرام خان چه دغه وخت دَ مغلو طرفدار او خپل پلار خلاف وه. دَ وقتی تقاضو له مخه په ظاهره دَ پلار طرفدار شو. ولې په زړه کښې دَ خانئ آرزوګانو ئې دَ انتقام موقع لټوله. دغه کشمکش کښې دَ اشرف خان مجری طرفدارو دَ تحصیل صوابۍ په جلبۍ نوم ئې کلی کښې په بهرام خان حمله اوکړه. شکست خوړده بهرام خپل پلار له راغلو. او دَ خپلو

کړو ئے ترے معافي او غوښته. خوشحال خان او اشرف خان هجري دواړو هغه معاف کړو. بلکه هجري ورته دَ کابل دَ صوبیدار امیرخان نه منصب هم واغستو. خو سره دَ دومره ښیګړو دَ بهرام خان زړه هجري ته سپین نشو. او دَ دے موقع په خوَ کښ وه۔ چه دَ اشرف خان هجري په جاګیر قابض او دَ هغه په ځائے سردار شی۔

قدرت ته به منظوره نه وه دَ خټکو او مغلو دَ روغ خبرو سے او نه خوړو. دَ دغه خبرو دَ ناکامئ نه غالباً خه مودة پس په یو موقع دکابل صوبیدار امیرخان، اشرف خان هجري ځان سره کابل ته دَ بوتللو خواهش اوکړو. ولے هجري په خبره غلے شو۔ امیرخان په هغه شک من شو. هجري هم دَ امیرخان په نیتبوه شو. دواړه په یو بل بے اعتباره شول. هم دغه ورځو کښ دَ اشرف خان هجري یو رکن پسته آزاد ګکیاڼے دَ امیرخان دَ لاسه سوات ته تبدیلے وه۔ او دَ هغه ځایه به ئے په سرکاری علاقو حملے کولے او او لس کښ به ئے دَ هغه خلاف دَ نفرت او کرکے پیدا کولو کوششونه کول۔ دَ آزاد ګکیاڼے سرګرمئ او اشرف خان هجري کابل ته نه تګ دَ امیرخان او هجري دَ اختلاف سبب شوے۔ عن چه امیرخان دَ اشرف خان هجري په ګرفتارئ مجبور شو. او راجه رام سنګهه ته ئے دَ هغه دَ ګرفتارئ حکم اولیږلو. ولے راجه رام سنګهه دے ته تیار نشو. امیرخان مجبوراً دَ اشرف خان هجري یو دوست سید بهولا ته دَ هجري دَ ګرفتارئ و لود پاره اووے۔ دَ سید بهولا

او امیرخان ترمینځه دَ خبرو په دوران کښې راجه رام سنګه مجری جمرود ته راواوبللو. او په رموز رموز کښې ئې دَ چپلې ګرفتارئ او سید بهولا نه دَ احتیاط پخقله آګاه کړو. دَ رخصت په وخت دا ئې هم ورته اووئے. چه څه وخت کلی ته دَ تلو په نیت پېښور نه تیریږے. نو په بنهر مه ځه. بلکه په بله لار او یاد بنهر نه بهر په بهر دَ تلو بند وبست اوکړه. ولے پخپله دَ هغه ذړه کښې دَ حکومت خلاف څه نه وو. نو ځکه دَ ګرفتارئ حادثه دَ هغه په خواب او خیال کښې هم نه وه. او اشرف خان مجری چه څه وخت دَ جمرود نه سرائے اکوړی ته روان شو. نو په حیثیت دَ میلمه شیخ خیل دوست سید بهولا کره پېښور ته راغلو. سید بهولا خو مجری په آسمان غوښتو. ولے خدائے په مزکه ورکړو. بهولا دَ روتې دَ انتظام په بهانه څه وخت دپاره دَ مجری نه رخصت شو. او چه مجری خبرید و. نو بیاسپایانو ګرفتار کړے وه. دَ ګرفتارئ نه پس هندوستان ته اولیږلے شو. څه موده په ګوالیار او پسته بیجاپور دکن کښې دَ یو قیدی په حیثیت بندی شو.

دَ اشرف خان مجری دَ ګرفتارئ په وخت دَ هغه ځوئے افضل خان دغه وخت بنګار له وتلے وه. دَ حالاتو نه خبرو لو دپاره یو نوکر هغه پسے لاړ. څه وخت چه افضل خان کلی ته راورسید و. نو کلی کښې یو هوکړه شوے وه. خوشحال خان دغه ورځو کښې نظام پور کښې وه. افضل خان سره دَ خپله کوره

نظام پورته نیکه له لاړ - ځائے پځائے ئے د اشرف خان هجری د خلاصی د پاره جرگے اوکړے - یوه جرگه په زیارت کاکا صاحب کښ مقرره شوه - د غه جرگے له ئے بهرام خان هم را اوبللو - او دا ئے فیصله اوکړه چه چونکه بهرام خان په مخلوکښ د کافی اتباع اثر او رسوخ خاوند دے - او افضل خان لاکم عمره او نا تجربه کار دے د محال تری او بولاق سرداری به بهرام خان ته اوسپاری -

او بهرام خان به په خپل اثر او رسوخ نه صرف هجری له بنده راخلاص کړی - بلکه شاهی دربارکښ به ورله د منصب سفارش هم اوکړی - خوسره د دے چه د محال تری او بولاق سرداری ئے بهرام خان ته اوسپارله - وے افسوس چه بیا هم دا سودا او نشوه - او خوشحال چه خبرید و - نو هجری بیا د گوالیار قلعه کښ د قیدی په حیثیت بندی شوے وه - چه د بیجاپور او گوالیار په قلاگانو کښ د څوارلسو کلونو د قید نه پس د مسافری په حالت کښ په کال ۱۲۹۴ء سنه ۱۱۰۶ھ کښ د خوشحال خان د مرگ نه پنځه شپږ کاله پس وفات شو -

د هجرت ئے زر سل شپږ وو ؛ اشرف خان چه فوت شو یاره
دغم اندوه د ده تاریخ دے ؛ که حساب کړے وے شماره
۱۱۰۶ھ
(د آزاد خان)

**شاعری:-** اشرف خان هجری د خپل وخت هغه منلے شوے شاعر دے - چه د ورپیښ شو و حالاتو له اثره د هغه شاعری یو داسے خاص رنگ واخستو چه د هغه نه

وړاندے یا کم از کم دَ هغه تر زمانے دا رنګ په پښتو شاعرۍ یا خو بالکل نه وه. او یا که وه، نو هم په نیشت برابر وه. دَ هغه ژوند یوه المیه وه. او دَ ژوند یوه نویه برخه ئے په قبیلوی جنګونو او آخری تول عمر ئے په زندان کښ تیر دے. دَ دکن بیجاپور په زندان کښ دَ دوه دغه خوشنوا بلبل چه په خپله اسیرۍ، بیوسۍ او بے ارزۍ په ژوند ون دَ سوز و ساز، درد و ګداز نه ډک کوم اشعار وئیلی دی. او یا ئے چه دَ وطن په یاد او محبوب په هجران کښ کوے ساندے، آهونه او اسویلی کړی دی په پښتو ادب کښ دَ حزنیه شاعرۍ یو درد ناک باب دے.

دَ پښتو سره سره هجری په فارسه کښ هم طبعه آزمائی کړیدهٔ. او زما دَ وړاندے په دغه دریو قلمی نسخو کښ دَ هجری دَ منظوم کلام یعنی غزلونو، نظمونو، قصائد او مقطعاتو وغیره مجموعی تعداد تقریبًا دری ذیرش دے. دَ خپلو فارسی اشعارو په حقله وائی:-

په اشعار ئے دَ پښتو فارسی تیرے کا ؛ که هجری په ذات خټک دَ روه پښتون دے

چونکه پښتو دَ هغه مورنۍ ژبه وه. او په تیره تیره بیا دَ پښتو دَ پلار (خوشحال خان خټک) دَ ترتیب لاندے دَ هغه شاعرۍ خریوے کړیدی. غالبًا ځکه هغه دَ خپلو پښتو اشعارو په حقله دا دعویٰ کوی چه:-

په پښتو ژبه م سیال دَ شعر نشته ؛ دَ معنو په جهان شاه اشرف خټک یم

---

دا محال دی چه شاعر به پښتو کښ ؛ بل هجری غوندے په فن دَ شعر فردوی

بل ثانی دَجواب نه وینې په دور ÷ مجرّی ځکه مخپل شعر کا پتاخ

کهٔ م سیال دَ شعر څوک په دور غواړی ÷ بیهوده تر هغه مه کښه بسیار

مدت بویه چه شاعر هسے پیدا کا ÷ چه وینیل مجرّی خټک غونډے مطبوع کا

دَ خپلے موزونے شاعرۍ او بیا دَ خپل یو غزل په حقله داهم وائي ے

مجرّی هر غزل چه تر په وزن جوړ کړے
په لذت کا دَ دنیا عالم محظوظ

دا غزل چه مجرّی او وے یقین او کړه ÷ که ئے نوم شاعر په دور دَجواب شته

لکه څنګه چه دَ مخه و یئیلے شو یدی . دَ محبوب په هجران کښ چه
هغه کومه غم زپلے وینا کړیده ، دَ هغې یو څو نمونے دا دی :- ے

څو دَ وصل خوشی تیره په زمان شی ÷ مجره ؛ ته به م څو سوزه وے لمبو کښ

ما مجرّی ته ئے هجران دکن لمبه کړ ÷ ځکه تل دیار له غمه دُرافشان یم

یو مجرّی دَ هجر غم تر لمن او ینو ÷ نور همه دیار په وصل تل اختر کا

هغه ورځ دَ هجر غم لره سزا شوم چه له یاره په ژړا ژړا جدا شوم
ما هله ماتم دَ ځان وه کړ په وینو چه اتک وته م شا کړه په ژړا شوم

اوس به خپل دَ وطن کاني بوټي ژاړم
دَ رخصت سلام کړے ترِ بېدا شوم

یو ناوک مې په دل لګ راورهٔ له روهَ
ځار وجهار مې دَ باغ وه نکړ خطا شوم

په محنت مې یو ریاض جوړ کا په دهر
لا مې ګل بوے کړے نه څیني جدا شوم

لوے ونګ په خندا شین شه له هوسَ
چه هودي جبل په مخ زه ورته شاشوم

یو پاړو په دکن نشته چه مې دم کا
ګرفتار په کنج وکاو دَ اژدها شوم

دَ هوسې په ښکر برات دَ وصل مخ شه
چه راپورے په بدیه دَ نوبدا شوم

دَ وصال و دل مې ګنج پرِ نازیدلم
تار و مار هم دَ هجر په وغـا شوم

ن به خپل له هجرَ ژاړ کوم وچا ته
ما پخپله غم خرید که چه اشنا شوم

بس غبار دَ هجر بخت را تخته کم کا
په بلبل بلل ے ستړے په صدا شوم

زه خټک د یار طلب کړم موندهٔ نشي
له ناکامه ے له غم سره ملیا شوم

---

رب دِ ورک آتشین تېغ د دے سرنا کا
دم په دم دَ مرده غم راته احیا کا

په هر لور چه ے له قریه مسافر شوم
راته اور هغه مکان په ژړا بیا کا

په کړکې کښې ے له قریه کوېزان وم
ماوګنده مې ترے بېل چرخ دَسما کا

بیجا پور له چه را غلم که مې غور کړ
ولے هم هغه فغان دے چه دا کا

زه لښه دَ هجر مره کړمه په او ښکو
والی بیا راته پوکے سرے بالا کا

ما په ډیره ناله نوکُ صورت اوچ کړ
لا مې هم چه بانه اوچ وینی غوغا کا

یا جدا ده له یارانو پسے ژاړی
لا زما په حال خبره شوه ژړا کا

چه ے غور زه په مضمون دَ آواز او کړ
واړه یو په یو بیان قضیه زما کا

ما چه راز دَ حقیقت له نایه غور کړ
څوک به څه رنګ له یاری طمعه وفا کا

که یو دم وصل د یار چاته موجود شي — هغه دم یې بیا ګردون سره جدا کا

هجري ته بانه اوچ مه لره چه خوږ یې
ستا په روغ وګړي ځر دي که خندا کا

---

چه خوږ عمر مې زما په نامه باد کړ — هغه مخ را ته خاطر په دکن یاد کړ
نیمه شپه مې هسې ژغ وکه له درده — چه اوده خلق مې وینس هغه فریاد کړ
هزار لاره مې ژړا کړې په مخ روغې — په دا فن مې تن مجنون غوندې استاد کړ
څوې زه په غم د هجر پامال کړم — فلک کله هومره جور په فریاد کړ
چه لبنکو د هجر نه دې لا مات کړې — زړه مې کوره چه قضا لکه فولاد کړ
د یار نوم به مې په څه وظیفه نه وي — چه عشق دا سبق زما د زړه مراد کړ
د وصال مخ به لا کله را پیدا کا — په امید مې همه عمر بې سواد کړ
تر ساعت پخوا څوک نه رسي مطلب ته — د هر کار یې مقرر وخت و میعاد کړ

هجري څشکل ژړا نه کا نن واعظه
چه له یاره نصیب لرې په هیواد کړ

---

څوم ایښې په خاطر د هجران بار دې — له وصاله مې نصیب تش انتظار دې
د وصال تریاق را و بخښه مینه — هر نفس مې زړه چیچي هجر د مار دې
چه شراب د هجر څښې بیغمه مه شه — خود به درشي البته هجر خمار دې
جدائي په مرګ له یاره ارمان نه وي — چه ژوندۀ ځنې جدا په ځان یې زار دې
چه هر ګز یاري له چا په دنیا نه کا — په دنیا کښې سړي دیر ملنګ مې یار دې
څو دا شین فلک دوروند کا په زمکه — په ژړا یې له نیرنګه هر جانبا دې

نه ئې یو ساعت قرار پڅان د واکړ　　　نه عالم دَ ده له دوره په قرار دے
دنیا څکه لبالب ده له افسوسه　　　چه آخر دَ خزان وار او ل بهار دے
هیڅ باور ئې په بقا دَ بنا دې نشته　　　همه غم لره پیدا دَ ارمان دار دے
زه خټک په بیجاپور اشنا په دوه دے　　　ولایت مې سره اړ دَ هند و بار دے

چه هجري عوند جدا وی له یارانو
که بادشاه شی په دکن عمرئې خوار دے

---

دَ وطن سره دَ خپلې مینې اظهار داسې کوی:-

زه هجري دایم هوس دَ خپل وطن کړم ؛ بیجاپور که هر خو ښه دَ اورنګ شاه دے

---

هجري ته خو تل هوس دَ ولایت کړي ؛ وملې ستا ورتله محال مګر نصیب وی

---

که نصیب بندۀ بند کړے په دکن کښې ؛ دامن ګیر ئې همیشه عشق دَ وطن دے

---

دَ ذره بانې تل دَ دوه په زمکه کړځي ؛ که هجري په دکن ناست خالی بدن دے

---

او په تیره چه په زندان کښې دَ خپلې محبوبې دحال نه خبر شی نو په څومره اثرناکه لهجه کښې ورته وائی:-

ے

چه لتا نه سلام داغې په بادبار
په زړګی ئې ملهم کیښې دَ افکار

له سلام دَ پس داچه ختم خوښ دے
دعا کړه که زړم روغ کاندی ستار
له دعام کله هیره یو ساعت شے
که په شه به ملامت کړم صد هزار
په فرمیږ که دِ دانه خطه نه ده
دَ اشنا بیلتانه کړے دے پرهار
میه مار لکه دِ ماپه پښواوده شه
غم مے ستا په ختم که کړه وی کذار
چه دَ زړه اوړ دِ وسر وته روان شه
له هغه تاوه کړدن دِ شه بیمار
چه دَ زړه په سرم ستانامه ده لیکه
کمان مکړه چه په ځاے وی دبل یار
بنا ئستـه په جهان دیر کلے دی
زما زړه شه ستاپه مینه گرفتار
په ما هر زمان اختر دے چه تا ویم
بے دیدنه دِ دکن شه راته خار
په راحت کښ دروغژن دَ مینے لاف کا
په سختی کښ ذرتر زره شی ویزار
په اخلاص شه راروانه فکر مکړه
وهمت وته شی لنډه لویه لار
که م قدر دَ اخلاص لرے په زړه کښ

بے نمابه وی اغزے درته بهار
تل دِ لاف دَ پت کاده پخپل وطن کښ
دکن څه دے که دښتیا کوے اختیار
تر هند وے لمه مشه په یاری کښ
چه په یار پسے دَاوره نکه ډار
دَعاشق په زړه کښ ځائے دَ صبر نشی
همه حال مې درته وَه یکښ په گفتار
که پما پسے رانشے ودکن ته
په دروغ دِ راته که دَ مینے شمار
دَ لیلےٰ غوندے دښتیا وَه کړه ناځی شه
په مجنون پسے وطن کړه هند وبار
دَ ژوندونه خبر نه یم چه به څه وی
که اصلی ئے دیدن راکړے په تلوار
چه دَعشق سوروی دِ زور راپانے وه کړ
تاد بتار ئے کړه دِ ما دَصبر هار
په دکن کښ ناوے جونکے نه دی
که مې زړه په چا لوے لږ قرار
همه رنج راته آسان که یار لیدلے
بے جوړه راته قیامت شه روزگار
چه ځه ستاله درده سوزم په دکن کښ
ته به څه کړے که وطن دِ شی گلزار

نور همه بلا آسانه چه په تن دہ
جدائی م زړه چیچی لکه ښامار
که په ماپسے ومړخره ترشا نکړے
په لباس دکړما وه داته بازار
شپه او ورځ د یار دیدن له خدایه غواړم
دَ دنیا اسرے همه دی تار په تار
غم د نخوړ سره احته دَ روغوخه دی
چه بے یاره ئے نور نه دی څه پکار
دَ فانی سرایه دباد غونډے ګذر دے
خدایه دِ منکه په یاری کښی څوک مکار
که عراقی غونډے په تدی ولاړه نشے
نور دِ اوشلوه زما دَ ښینے تار

بیلتون دِ ادر اشرف ئے وَه سه
تر دیدن پورے وَه کوره څه شی کار

---

دَ اشرف خان هجری ځینې غزلونه مونږ ته دا ښئی۔ چه هغه دَ خوشحالی دور یو کامیاب غزلګو او مقلد شاعر وه۔ ځیلے روانی او ساده بیانی پښتو ادب کښی هغه ته یو خاص مقام ورکړو۔ دَ هغه ژبه خوږه او پسته ده۔ وے سلیسه نه ده۔ ځکه چه کله کله بے اختیاره هغه دَ فارسی او عربه

دَ الفاظو استعمال کړے دے ۔ دَ هجری په کلام کښ تصوف د
نیشت برابر دے۔ اکثر شاعری ئے دَ مینے او محبت ، اخلاق
او وطنی احساساتو مرقع ده ۔

همیش خلیل

۱۵ مئی ۱۹۵۸ء
غریب آباد پېښور

بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِیْمِ

# ۱

هسے جوړ په انسان ولے سما کا
چه یے کار همه په خت دَمُدعا کا
کیفیت یے مشابه له بازیګرو
نوے نوے رخ له غیبه هویدا کا
ماه و نمر جوړه مهره دَ حقه بازو
په ماښام یوه په خوله بله پیدا کا
توره شپه ګویا پرده دَ نیرنګیو
وهرچاته روزانه بازی نما کا
سره مهره په لبو ورنیسی تیاره شی
بیا عطسه دَ شپے مصدره دَ صبا کا
زمکه سره لکه شهپرشی دَ مورانو

چه پیدا له نمه داغ د زړو هسا کا

د مراد باده سرګنده کا سری ته

بیا یې ده در ځینې پته په جفا کا

نه به یار و یارته او ځینې قسم دے

نه به خوک ځینې حاصله تمنا کا

په راستی م حال د دیر وصبین دے

که جاهل د زړه غوږ ونه په وینا کا

مګر دوغ ختک غموږ لیوسی که

جواب کله له مردهٔ وُ خوک حیا کا

بیا به کله د دخو ؤکا سنګار ونه

په لیمه د حسن ستر کے بے جلا کا

نه به بیا آدم شمله په خیره کیږدی

چه د دخوی سینه یخ په تماشا کا

د کړ دون هسے روش دے له ازله

دوه مین یه زجر تل سره رسوا کا

دلے دلے مهرے بیانی حیرانی ده

نه دیت په موت شته نه څوک دعوا کا

کاروانونه په دا لار لا بهیږی

غمزده قصه دَ دیو آدم شیدا کا

ته سودا له سره و باسه مهجوره

چه یے عقل تن په تن درته احصا کا

په بدن م وینسته ودری بیشکه

چه قصه دَ وامق یاده له عذرا کا

څوک خبر په قطب و کانی یارانو

گلنازو دَ کور بندی چه یے رها کا

نازو کله کله خاورے دَ میدان شو

خوار قطب کله حیات چه یے هوا کا

نه به نور قطب زنده شی په دادو

نه به زلفے دَ نازو په لاسو بیا کا

تر زیبق به مضطرب شی که یے واورے

چه رانجا دَ هیرَ له هجره څه بلا کا!
نه به وصل دَ رانجا وشی له هیره

نه به هیر دیدی روښن په رانجا کا
الفته قیس یې هسې رنګ جدا کا

چه دَ تور قفس بندی غم دَ لیلا کا
مخامخ به شیرین نه شی له کوه کن

که پاره دَ قبر خونه په غوغا کا
دَ حیات خواهش به لور دَ جلال نه وی

که نسیم یې خاوره ګټه له یونا کا
ورقه په چرته لار خبر دِ واخلی

تورې خاورې چه یې ښکې په ګل ښا کا
اننګی د رعد کور په خوله کښ ژوی

رباب کوچه دَ غضب توره ترملا کا
چه دا تور قبر محبس دَ ګل چهرې دې

ځاے لری که یې اورنګ ته وبالا کا

نازک تن يې دَ دِ من يوه لقمه کړه
ترو به کله تل دِ خاک سره وغا کا
هر عاشق چه نن سبنې لري له دوره
په عذاب به يې پښو غنډ جدا کا
برمته دَ لحد نه راځي په بيا رته
نه به څوک له مرګه اخذ خون بها کا
هسې نه چه تيغ يې بخ شه پوړ لیو
لکه څه يې کړه مهر يې هسې به تا کا
هر زمان چه خنجر و کا زي دَ قهر
له ګدا يه برابر لوې امرا کا
دَ فاضل په فضيلت يې رقت نشته
نه يې تورَه لز ادب دَ اوليا کا
دا ويل به ارمان کيږدي په وکړي
که قرأت يې په منبر باندِ مُلا کا
چه آخر وفا له دوره مونده نشي

مرد هغه چه په حیات همه ترشا کا

هجرَی دُرِ دِ پیوسته دَ حقیقت کړه
کیفیت یې کانی زره کره ژړا کا

---

دَ عاشق سره نسیم دیره وفا کا
چه له بنه تخه زلفینِ خواوشا کا
له عذارو به یې چا سنې کړې لرې
دا شمال د په حبش کښ روم پیدا کا
بل اوره چه له ریاضَ تار په تار شی
په سما بدر ښکاره خپله ضیا کا
دَ جبین په چین یې توره تاریکه شی
نیم خنده یې په شیدا بانډِ صبا کا
نه به نام دَ معشوقې وَه نه دَ حُسن
دَ عاشق فریاد یې هر چرې رسوا کا

که زه سر شندم په کشلیو عیبِ نشته
دا خصلت دَ محبت چه سر کیا کا

په سینه جامه پاره ورته والیم
چرګنه چه په ناوکِ م زره خطا کا

په جنت کښ به خادے وی دَ کشلیو
چه تیرے دَ حورو ژوی اخن ربا کا

په مشکلو ګرفتار طمع دیدن کړم
په خواهشِ م دَ خاطر خلق خندا کا

په قدریٔ ورځے شپے نه پیدا کیږی
کوندِ وی اچه دیدن یو ځله وارا کا

دَ وصال لارِ بندی دَ ظلم اور کړے
خام امل دَ رُوهی ګوره چه رجا کا

دَ بهار په ګلو سيل مسته شا کا
نوے داغ به دَ ميَن په ځيګرپيا کا
عاشقان يې هميشه لری زخمونه
ناوکی بانه يې ګوره څه وغا کا
تورے سترګے يې عادت لری دَ ترکو
بيګانه م دَ زړه کور همه تالا کا
په هر لورے دَ زينت همسری نشته
چه دَ خيال مخ يې سر ګند کله قفا کا
مرغلرے يې په لعلوکه مخزون وی
شهريار به هسے ګنج چيرے پيدا کا
دَ شبنم غوټے په ګل دی آويزاندے
که دُر يې په غوږ ويو کښ بر پينسا کا
سنبل چه يې دَ مخ برابری کړه
صيقلی يې په مالش ځکه سزا کا
باد يې بوی دَ زلف تيرکا په رياض کښ

دَ چمن دلبرے خوله په دُعا وا کا
دَ اسباب حسن اُوبنی څخهٔ نشته
څوک چه بد والیٔ وځ ته یٔ خطا کا
دَ نکریزیو رنګ یٔ کله وی په لاسو
په پنجود شیدا ویني مصفا کا
تورے خاورے یٔ دَ درزمادا رودی
دَ دید و علاج مِ کله توتیا کا

په وصال به دَ روهی خاطر قرار شی
بیلتانه په زړه و یشتلے دے غوغا کا

دَ کُلونو تصویر ستا په تن بویا کا
روشنی یې دَ مخ لال طوطا گویا کا
که آرایش دَ حسن وَه کا در ته گوری
په دیوال صورت به هم دَ ځان جویا کا
د بدیه دَ نمر باطله هغه دم شی
چه سرکنده تر بر قې دَ مخ ضیا کا
دَ زینت پایه یې چرته ده بلنده
چه کینه یې ماه و مهر ثریا کا
دَ شکر دَ جوریا کوم وائې لیې لولې
سرې تودې سره پریوتې خبر بیا کا
په ستم عاشقان وژنې روهیله یې
چه پروني دِ سالو قمیص د ندیا کا
په تارک باندِ کا زه کُلونه کیږدی
و والی دَ ذره په تش دیدن بیدا کا
دَ کړ دون خاصیت کله بنه منصف شی

که یاران جدا کوی بیا یې ملیا کا!
دَ افکار خټک په زړه به ملهم کیږدی
که په خوب کښ ور بشکاره خپله رویا کا

په تاثیر یې دَ نظر روڼي حیران دے
چه بې اوره صورت څرنګه جلیا کا

---

زړه م تل په هغه مخ پسې افغان کا
چه ضیا یې چراغ ګل په یوه آن کا
دَ جګر په تاو م سترګې شوې لعلونه
تر سرو لعلو مې غلرې دی باران کا
لطایف یې چه په خیال کښ تصور کړم
بې درنګه دَ آرزو او به دهان کا
نازکي یې دَ تن څه سره مخې کړم
بې وقاره ګل ورق مهین کتان کا

دَ عاشق پنجے شانه دی غم به نه وی
چه کاکل یئے په غور نکه پریشان کا
له قامته یئے قیامت هلته نازل شی
په جبین چه تیکه جوړه په خوله پان کا
کله سیل لره ځی چه زیور غواړی
عاشقان تالا کوی نوے سامان کا
په دوو چشمو شیرینه تر لیلیٰ ده
خو په زړهِ خرابی لکه لیوان کا
پس په ناز رفتار کوی دجنینو کنه
که زه مرم دلبره خه له کنه زیان کا
دواړه شونډے یئے نبات انګی سیب دی
دَ عشاقو زړونه تول په دغه خوان کا
نه مثال یئے راخوے کا تورے زلفے
په هر خم کښ یئے بے عذره بندیوان کا
دُر فروشو کره کوریه کوے ژړاشی

چه گویا تیکه خندان دَ زبان کا
عشق مې بنیه دَ زړه هسې ویرانه کړه
لکه خوړ په ژړا تور دَ خط روان کا

جواهر چه دَ مغلو نه سیند یو سی !
چه فلک یې روهی وار په غم سوهان کا

---

چه نسیم یې شَم دَ زلفو په صُعود کا
په هدیه یې هر پس دَ باغ مسعُود کا
په دا بوُئ چه یې غُنچه شی مُعطّره
تو له خوله سره کُشاده په درُود کا
ربه لاړ یې په ریاض کړه برابره
چه هر گل یې له عذار ولون سُود کا
هغه دم چه قدم کیږدی په ریاض کښ
پخدمت یې خیار وا منگل یې زود کا

دَ سرو وو په جنبش هسے کمانی یم
چه دَ قد سیالی یئے نه لری سجود کا

مرتبه دَ حُسن تیره تر لیلیٰ ده
مجنون ځکه سر نکون ورته سجود کا

په لیده یئے دَ عُذار و زړه لنبه شی
لاندِ باندِ ځیگر شین خالِ کبود کا

تور زنځیر چه ولوول که په هر لورے
گویا جنگ لره به دا دَ زنگ جنود کا

همسری که یئے آهو کا له رفتاره
په ناوک به یئے زخمی نازک وجود کا

بیا په شینِ ځمی سنگار یئے کوه که
مره غمونه به هر چا وته موجود کا

سم کتل یئے زیبا مخ ته سِهل نه دی
دَ هستی له بوده لرے تار و بُود کا

کوم بشر یئے حُسن او لیده په ستر گو

چه یې نه پېژنه کا یاد نوم دَ معبُود کا
دَ زلفینو ول یې واکه شانه کا ښکه
اُس به مخ د ژمکې واړه لکه عود کا
زړونه هسې په نګاه له تنه یوسي
لکه تن دَ کهرُبا چه کاه ربود کا
خوار عاشق یې په لمبه دَ هجر وسه
لا به کله ورښکاره مخ دَ بهبُود کا
مهرکان په هغه ژمکه نوبهار شي
هرطرف چه یې دَ ناز جبش ورود کا
محتسب قاضي کُدام خبر دِ واخلي
په سُخې شیدا یې جور تورهنود کا
خاصیت یې دَ زړه سنگ نرم به نشي
که عاشق دَ ورهغبار دَ آه په دود کا
سُور سالو به یې څوک لرې کا له مخه
مګر بادِ صبا هې به دا مقصود کا

دَ سپند غونډِ یې تن په اُور لوګے شه
که یې بد نظر و مخ وته حسود کا

چه یې نن هجر دَ یار په هجری کاندی
نه یې کبر په مُسلم نه یې جهُود کا

---

چمن شنے جامے په بر د هر پسر کا
لون لون دستار ونه ور پسر کا
دا اودی زنبق پسر کا ململونه
دَ سوسن په کله جوړ اودی مغفر کا
دَ لالا په لاس پیاله ورکړه دَ میو
دَ هوس دا ریه پکف دَ نیلوفر کا
مکلل افسر دَ تاج په هامه کیږدی
که و فریې شرمنده شانه پسر کا
لوئے ملک دَ چمن واړه رنګینه دی

لا بنیوه په زروکا شمله کُلمر کا
صد زبان مگر دَ گلو بنه طغیان دے
چه قبایئے مرمری څهره دَ زر کا
په جلوه دَ گلو مره زمکه تازه شی
کل عالم یئے له نوروزه کروفر کا
بضاعت یئے هسے برلبنی له زینته
چه رونق یئے دَ لباس خیره اختر کا
دَ ضیا تیغه یئے سر په فلک کیږدی
دَ هر گل روښنی کل شُغله دَ عنبر کا
همه شاخ دَ ونو سپین په شگوفه
وله هر ورق تیره لکه خنجر کا
دَ قدرت عطار یئے تن هسے فخور که
چه پرتو یئے دَ چمن خاورے عنبر کا
په دیدن یئے دَ هر چا کره نشاط وی
مگر غم شی په سپهر چه اختر کا

له عذار رویئے کونه د ریاض څه شی
لکه شین مینا په نس د زر دختر کا
له ازله د جمال زیور قسمت شه
د خپل مخ په حُسن کبر هر دلبر کا
د میرے غاړه نازینې په اوږیو
بده خان فخر په کُل د پیغمبر کا
رابیلی چنبه کُهنه د ریاضونو،
مستے جُونه خیال د زرو په زیور کا
کړهٓ مار غړیئے په حُسن د کُلرنګو
نو لکی ایلم دماغ په صنوبر کا
میر کلان د خان په اسم مفتخر شه
د بنه فخ غوندِ په لوت کبر خیبر کا
سریئے څکه مساوا که د فلکه
د ر ندانو ځائے په توره لواغر کا
که دا شعر عنادل واوری په غوږ

په یقین به مِ اُستاد بلکه پدر کا

دَځیگر وینویٔ جوش وَه کړه له سترګو
دَهجری ستر کے سپیرے په موجیٔ تر کا

---

چه آغاز په سحرګاه دَ شاه نوبت کا
راپه یاد دَهغه تیر عمر نوبت کا
کوس جفا دَ اقبال وائی له اکبره
بیا قصه د جهانګیر دَ سُلطنت کا
قرناخاندی په قهقه دَحال په شره
التماس له عاقلانو دَ نصفت کا
په ګفتار که یٔ نقصان دَکذب بیشته
معتبر شاهدان تیر دَ شریعت کا
یعنی وار دَ هُویٔ یٔ نن پرون پدرهٔ
کوره څوک به صبا شاه دَ مملکت کا

دبدبه دَ اقبال چا ترسره نکړه
اورنګ ولې په اورنګ هسې نخوت کا
کوس قرنا اګرچه یاد کا دوارو نو
ولې نایې هر کوره سوز په حکایت کا
دیر مدت بنده له نایه مُقرّب شه
شب و روز یې دا آواز مصاحبت کا
بل کلام له نایه ما شنیده نکړه
سر په سر واړه له هجره شکایت کا
ګاه خوبي دَ سکندر له دوره وائي
ګله یاد دَ فریدون شان و شوکت کا
ګه نسبت دَ ضحاک نوم کا په جورونو
ګه رحمت دا انوشیر په عدالت کا
ګه دَ جم حسرت دَ جام له هجره وائي
ګهې یاد دَ بخت نصر شقاوت کا
ګه شکوه له شیطاني نمرود کاندي

کښې کوي فرعون یاد په حقارت کا
که کلِه کاندی له وصله له بهاره
وائ نه لري بقا په تله سرعت کا
یعنی غم واړه وصال دے په دُنیا کښې
بیهوده شِکوه وکړی دَ فرقت کا
زه یاری ه دَ بیلتانه په اُور کښې وسوم
رب دِ ورک بیهوده کار دَ محبت کا
زه بنده په ځائے ولاړ هکو پکو شم
چه سُرنا بیان دَ وصل مذمت کا
په هر زره یے وسِل ځکه تاثیر کاندی
چه یے ژغ اسرار پیدا دَ حقیقت کا
دَ ختک بنده سوګند دَ یار په سترګو
که هرګز سُرنا بے ځایه نصیحت کا
که دَحال په نظر وګوری ختک ته
ورته یاد هغه دَ تیر عمر لذت کا

په څورنګه ناله وُکه له دورانه
یو په یو خوبي بیان دَ ولایت کا!
باغ وراغ راته حساب که له اوله
بیا پسې دَ وطن یاد کوڅې ومحلت کا
دَ هر ځي هجر چه داغ زما په زړه دے
دم په دم راته مثال هغه صورت کا
په اظهار دَ دے مذکور دَ سړنا خته دي
خو زما په ناله خوش شه اشارت کا
خپل نصیب له هسې یاره مصاحبه کړه
چه مِ کسي بے او بو وی ملامت کا!
ته په څرنګ فغان نکړے اے خټکه!
چه آشناستا په ژړا و بشاشت کا

کاڼې هم پَه نوحه نرم دَ هجری شي
چه ترزړه دَګذشته دورِ صحبت کا

دَ بوسے وعدہ همیش یار په فردا کا
زړه زما کله باور په دا وینا کا

چه هوس کانن دَ ګلانو په کارونو
عاقلان په هغه کس پورے خندا کا

یاره آګه نه دے دَ دهر له نیرنګ
لا رښتیا په زړه کښ نه لری دغا کا

هومره ناز دَ زیباګ په حسن مکړه
خزان کوره څه شکل هیڅ دګل صبا کا

ته له کبره چه سما سره دروغ کړے
زمانه به دَ عمل جزا دربیا کا

دَ وصال په ملک اسباب دَعیش ډیروی
ولے زړه ئے دَ هجران لښکر تالا کا

دَګل څخ ته هرګز مه ګوره بلبلَ
جُدائی به دِ تازه زخمونه لا کا

په صلاح به بلبل ګل کله رخصت کړ

دَ خزان باد یئ په زور جُبله جدا کا

دَ صبا په امید ډیر په ارمان لاړل

نن به څوک باور دَ عمر په وفا کا

چه په طمع دَ ژوندون نه فراغت کړی

شین سپیم فرصت کله د بقا کا

نن نوبت دَ یوه کار په جهان ویم

کانده بله چار سرکنده په دُنیا کا

بیجاپور هجری په خوب لیدلے نه وه

آخر پیښ شی هغه کار چه یئ قضا کا

چه زلفینِ په بنه مخ باندِ مرغول کا
هر زیبا مرغول یې وژله لکه غول کا

هر چه مخ یې برهنه په چشمو وه لید
په ژړا لکه مجنون خانه په چول کا

په چار کل یې ملک همه زیر و زبر که
لا به څه شي چه په غاره همه پسول کا

هیڅ اثر یې په زړه نه شي له نخوت
که شیدا په ناله تشه ناله قول کا

هغه کار چه یو نظر دَ جو نو کاندي
هسې کار نه هر اول نه دښه غول کا

شپې مه بزده په کټ پښه چربه خوږ شپې
څوکلونه دَ بستر خادمه تول کا

هر شیدا چه یې په دید دَ حسن ور شي
تش بدن یې رمیدَه خاطر یې اول کا

عشق یو څه سنګ محک دې په دُنیا کښ

هر چه شک دَغش لری نمائے پول کا
دَخور و ځنیو بها په جهان نشته
دَ دُنیا په مال یے بیعَ مکر کول کا

هجرؔی قدر دَطرو تر هر څه ډیر دے
که عزت یے غوک دَعشق په تله تول کا

---

چه اور بل دَمخ دَپا سه لکه سپر کا
دَ سرو کلو یے خاصیت همه دَنمر کا
دَ یاقوت مثل یے سکورنته آتش ده
سور بلاق دِ څنګه جوړ لکه ثمر کا
چمکلی یے ځکه سره دَ یار په وینو
چه خالش ته یے هردان لکه نشتر کا
ابروانِ جوړ لیندے بانه یے غشی
پیرایه دَحسن توره څوک خنجر کا

هغه دم چه سنګار ؤه که روانیږی
یو نظر یې صد ساله صوفی ابتر کا

ژولیده زلفې چه خم کا په رخسارو
خرابی ته اجازت زنګی لښکر کا

تورې ستر ګې یې لا تورې په رنجو کړې
هر بانه به دَ آشنا په وینو تر کا

نرمې نرمې قصې کا واره فریب دې
په بهانه په زړه دَ سحر کړ کا

اور اِندام یې وعاشق ته مهیا دی
دَ وصال خوا زه بهښت هجر سقر کا

دَ عشق سورې مشخص سنګ پارس مې
په هر چا باندِ چه ؤه مسی تن یې زر کا

په مذهب دَ سرباز الوکُشتنی دی
چه دَ عشق په لارې ځی له غاو ډر کا

غمت دِ نه ګوری هر کز دَ یار وځ نه

چه مایل وی په حیات ویره دَ سر کا
هرچه وه کړه دَ هجرؔی په زړه دلبرو
هغه تاخت په سره مغل کله خیبر کا

له جفا به هجرؔی شانه کا ویاړته
که پټ پټ یې تن په وینو کښ احمر کا

دَ ارمان په داغ به زړه خپل مبتلا کا
چه باور څوک په کار وبو دَ دُنیا کړه
په الطاف یې غرور مه کړه فریبي ده
گُمان مه کړه چه دا مهر په رښتیا کا
چه له تیرو یې وفا له سره نکړه
هرچه نن ځینې وفا غواړي خطا کا
دَ هر کار بنیاد یې ایښې په جفا دے
مه وفا غواړه له دوره نه وفا کا

په یاری دَ هغه یار بداِئي مه کړه
چه په یو نفس هزار رحَائے خندا کا

زه دَ یو ساعت باور په عُمر نه کړم
هغه اوم دے چه امید دیره بقا کا

دا زیبا مانئي چه تهٔ په جهان وینې
نهایت به یے گردون ده په صحرا کا

یو زمان به هجرؔی تیر په دکن نه کړ!
دوران کله په وینا خپله رضا کا

# ب

چه یې زلفې په خپل مخ کړې پیچوتاب
زما زاړه په مخ یې پرانست دَغم باب
غم دَیار همه لما کره میلمه شه
ماحضر م ورته پیش کړ زړه کباب
محبت څه هسې زه مالیده نه کړم
چه به خوښ شم په سل جامه دَشراب
زه په تیغ دَ هجر غوڅ بهار به څه کړم
زیرې روغ خلقو ته کار کا دَرباب
لا دَ عشق لنبې وملو ته جنت شوې
یا ماهیو ته بهښت وینم دریاب

په نرمۍ دَ زړو تسخیر کا غلط مه شه
دام طائر ته صیاد پټ کا په تراب

چه په خم دَ زلفو بند شوې تیښته مکړه
مرغه لا په جال آخته کا اضطراب

نن به څه مومم رها دَ عشق له چنګ
که هر څومِ وریتوي دَ عشق په تاب

هغه دمِ یې دَ زړه زرکه ښکون کړه
په ازل چه ښکار کاوه دَ ده عقاب

دَ زقن په چاه کښ بند رهام نه شی
مګر راکړه له دوو زلفو یو طناب

شپه دَ هجر طولانۍ ده تر حسابه
څو به ورځ دَ وصال ګورم زه خراب

ما هجری چه دَ باور په چشمو وه لید
دَ وصال عُمر بیر کم دے تر حباب

خسته زړه مې تازه نه شي په شراب
خُشکه ونه پهلا و نه کاندي په آب
شورش مکړه د گردون له کش مکش
لومه کلکه که مرغۍ په اضطراب
له هرچا طمع په قدر د هنر کړه
په منگل به وا طه نه شي د عقاب
هر صنم وخپل میُن ته حمیده وي
ماهي خوښ په بحر نه وي تر تالاب
تو یؤل د شهاب څه عذر یُې څوک کا
زه او به کړم د هجران په شپه عذاب
د حاسد په طعنه غاونه کار بنتیني
په سنگینه زمکه شور لري سیلاب
نه به جال د مکر بند شي د رندانو
نه به جل شي د نهنگ په مخ گرداب
یک رنگان د فکر نه کاله دو رنگو

سم سعور یئ منکور کې کېنې په طناب

په زحمت به م کردون ترحم وه کا

که په مژه دلسوزی کړے وی قصاب

عندلیب ختک بندی په هسے ملک شه

چه طوطا یئ ژبه والئ دَ غراب؛

# ت

دَ هجران له دوکه څه وایم وچات
پرِیږي نه ئیښي دَ فریاد طاقت ومات

هر ستم چه په ما کا همه روا دی
خو یو ځل دِ مسته وه دری نخرات

سره کونډه یږي په مړو نه عجبنا ئے کا
هرګز مه شه په آفت دَ ګردون مات

دلسوزی اِم په حال ډیره کړے طبیبه
وایئے خلاص به په علاج شے له آفات

دَ بیان زغوری پیژنے بے شکه
دَ زړه درد بڼه کله وی وتات

زه ختک هرګز رضا په پردیس نه یم
دَ یار مینے کړم جُدا له قرابات

د هجریؔ غم به بدل په خُرّمی شی
که څوک راوړی کره مےَ له خرابات

---

# ځ

لکه توره د یار هجر کړه په ما ورځ
په چا ورمه شه هرگز هسې سیاورځ

ته زما په هجران خوښ مه شه رقیبه
نهایت به شي د اهسې توره ستا ورځ

که وفا د وصال وار د هیچا نه کا
آخر شپه د هجر هم شي مجلا ورځ

د شباب د بهار ورځ ترکلو بنه وه
ولې نه وه چندان هسې باوفا ورځ

یاره راشه په دیدنِ م مشرف کړه
حق پیدا په جهان نه کړه د بقا ورځ

ته چه تل وعدهٔ دَ وصل په فردا کړې

کوره کوم ځې تولد کاندی صبا ورځ

ورځ دَ عیش لکه باد هسې آخر شوه

څو به ما سره کینه کا د عنا ورځ

خو آخر به لکه باد هسې ماضی شی

دا چه وینم دَ فرقت بې سروپا ورځ

غم بنادی دَ گردون تل په قرار نه وی

خو به تیره شی هجری دا دَ جفا ورځ

# خ

پہ دُنیا کښې پیدا نہ کہ هیڅ گلذار ځ
چہ خزان یې زخمی نہ کہ دَ سنګار ځ

کوم وصال دَ کوم دولت چہ میسر شہ
چہ یې خال دَ جدائی نہ کہ اظهار ځ

چا ذخیرہ دَ هوس کړې پہ سر کینبوہ
چہ فلک یې نسکور نہ کہ دَ دستار ځ

چہ معیوب پہ خط و خال دَ فنانہ وی
ما وہ نہ لید پہ دنیا هسې هموار ځ

باقی ګل پہ باغ دَ دهر مندہ نہ شی
ځکہ تل پہ او بنو تر وی دَ هزار ځ

دا گردش دَ زمان هسې بازیگر دے
چه هردم کا برهنه دَ نوی کار څخ

چه ثابت په یوه لوروی جنبش نه کا
هرګز نه شته په جهان هسې قرار څخ

دَ نن کار طمع هرګز له صبا مه کړه
صبا ګوره هویدا شی دَ کوم کار څخ

راشه زړه دَ ختګ وه ګوره مېن
چه هر لوری یې لری دَ غم پرهار څخ

هیڅ باور په رفاقت دَ عُمر نه شته
هجری هر نفس په خیر ګوره دَ یار څخ

# د

غم بنادی دَجهان باد کَښه یا گرد
په دا نه لری پروا آزاده مرد

آمد شد یئے تر صبا هم کړندی دی
تجربه مِ کړه دَ دور گرم و سرد

هیڅ هوس دَ زمانے وخوان ته مه کړه
یو لُقمه بے غمَ نه لری دَ خورد

په څو رنګ نقش پیدا په یوه دم کا
دَ فلك دورو نه تاس کښه دَ نرد

چاچه ناز دَ زمانے په یاریه وه کړ
په خندا کښ زخم ورکاندی پُر درد

غم بنادی که يې دَ هوش په نظر کور ے
دَ بقا عمر يې زیات نه دے تر ورد

هجرؔی بد عمل تر شا نغ په صفا کړه
چه په ورځ دَ محشر نه شے ګونه زرد

---

هرګز مه شه ستا له حبه زړه زما سرد
لکه نه شه له جورونو خاطر ستا سرد
ما به کله څوک رښتینے عاشق بولی
که مِ زړه شی ستا په غم کښ له وفا سرد
نه زما خاطر هرګز له وفا سوړ شه
نه ستا خوی شه په دنیا کښ له جفا سرد
نل په هومره جفا شانه کړه د من ته
نن به څشکله له تا شی زړه دَ چا سرد
څوغوغا پرِ همیشه کړه روغ وکړی

عشق هرگز نه شه دَ قیس له لیلیٰ سرد

دَ سود پند ورته همیش کړ واعظا نو

واَمق پند دَ هیچا نه که له عذرا سرد

نه دنیا هرگز وفا له تیر و وه کړه

نه خاطر شه دَ حریصو له دُنیا سرد

ستا په دید م سوے زړه هسے تازه شه

څو ریحان کاندي وهلے دَ گرما سرد

دَ وصال امید م تاؤ دَ هجران سوړ کا

او تبجن همیش خولے کا دَ شفا سرد

محبت به ستا په مرگ هجری پرېنږ دی

لبا سی دی که یے زړه شی په اِحیا سرد

---



لکه ماته که نصیب همه جهان اور
هرګز مه شه په هیڅ‌ا هسے زمان اور
په هغه جهان کافر په آتش سوزی
هجر بل که په دنیا زما په ځان اور
بیلتانه هسے آتش را باندِ بل که
لکه بل کا دَ بلبل په زړه خزان اور
په انداز زما دَ سوز کله پوهیږی
چاچه نه دے آزمیلے دَ هجران اور
که دَ یار دَ هجر غم را باندِ نه وے
راته سهل دے سرپیو دَ زندان اور

جور هومره طغیان وه کړ دَ سر انو
چه یې وریت کړ دَ دکن خلق ودان اور

لا تاثیر په ظالم نه کا سبب څه دے
دَ هجري په هر سحر لونی دهان اور

---

چه لتانه سلام راغے په بار بار
په زړګی یې ملهم کیښ دَ افکار
له سلام دَ پس دا چه څټ م خوږ دے
دُعا کړه که زړم روغ کاندی ستار
له دُعام کله هیره یو ساعت یې
که په ژبه ملامت کړم صد هزار
په وُرمیږ که دِ دانه خټلے نه ده
دَ اشنا بیلتانه کړے دے پرهار
سیه مار لکه دِ ما په پښو اوده شه

غم یې ستا په خت که کړے وی ګذار

چه دَ زړه اور دِ وسرو ته روان شه

له هغه تاوه ګردن دِ شه بیمار

چه دَ زړه په سرِم ستا نامه ده لیکه

ګمان مکړه چه په ځائے وی دَ بل یار

بنایسته په جهان ډیر ګلے دی

زما زړه شه ستا په مینه ګرفتار

په ما هر زمان اختر دے چه تا وینم

بے دیدنه دِ دکن شه راته خار

په راحت کښ دروغژن دَ مینے لاف کا

په سختی کښ زرتر زړه شی ویزار

په اخلاص شه رار وانه فکر مکړه

و همت وته شی لنډه لویه لار

که مِ قدر دَ اخلاص لرے په زړه کښ

بے لما به وی اغزے درته بهار

تل دِ لاف دَ پت کا وه پخپل وطن کښ
دکن څه دے که رښتیا کوے اختیار
تر هِندوے کمه مشه په یاری کښ
چه په یار پسے دَاوره سکه دار
دَعاشق په زړه کښ ځاۓ دَصبر نشی
همه حالِم در ته ؤه کیښ په گفتار
که پما پسے راشے و دکن ته ؟
په دروغ دِ راته که دَ مینے شمار
دَ لیلےٰ غوندے رشتیا ؤ کړه نامی شه
په مجنون پسے وطن کړه هند و بار
غه وعدے که په دروغ چه دِ کوُلے
زه دِ نشم تر تاپورے شرمسار
دَ ژوندونه خبر نه یم چه به څوی
که اصلی یے دیدن راکړه په تلوار
چه دَعشق سور و دِ زور راباندِ وُه که

تار پتار یې کړه دِ ما دَ صبر هار
په دکن کښ نا وې چونه کې نه دی
که مِ زړه په چاکوله لږ قرار
همه رنج راته آسان که یار لیدلے
بے جوره راته قیامت شه روزګار
چه زه ستاله درده سوزم په دکن کښ
ته به څه کړې که وطن دِ شی ګلزار
نور همه بلا آسانه چه په تن ده
جُدائې مِ زړه چیچی لکه بنامار
که پما سې وهر څه ته شا نکړے
په لباس دِ کړ ماوه راته بازار
شپه او ورځ دیار دیدن له خدایه غوارم
دَ دُنیا اسرې همه دی تار په تار
غم رنځور سره اخته دَ روغو څه دی
چه بے یاره یې نور نه دی څه پکار

دَ فاني سرايه دَ باد غونده ګُذري
خدايه دِ نکه په ياري بَنں ځوکه مکار
که عراقي غونده په تک ولاړه نشې
نور دِ اوشلوَه زما دَ مينې تار

بېلتون دِ اور اشرف يې وَه سه
تر ديدن پورې وَه کوره څه شي کار



یکباره دَ مهرکان لښکر دَ اُور کړ

په وغاۓ ځان کلونوته حضور کړ

ناسره دَ قتال هسې شوه بلنده

چه ریاض یې تابنده لکه تنور کړ

آفرین دَ وارو کلو په همت شه

شجاعت یې په ورق دَ باد مسطور کړ

دَ گُریز رخصت یې ورنکه قدم ته

په میدان یې دَ ښمن ثبات ظهور کړ

دَ قضا سواره حامی دَ مهرکان وو

نهایت یې دَ ښمن جیش مقهور کړ

کل دَ نمر دَ ذرو سپر پسر ولاړ وه
ابتدا یې سرو دَه له تنه چور کړ
دَ صد برلک مغفر یې ولواوه له سره
ضراوت یې له طره کله مهجور کړ
بس حیا نبق مانع که له قراره
په عراق یې دَ چمن سنجر معذور کړ
دَ تاج سر یې په کوپال که درے درې
داد یې وینو یې عذار دَ چمن سور کړ
په کشتن یې دَ نوکس دلیری نکره
دَ تتری په سر یې تومے دکسی نور کړ
دااودی که خسته ندی له خزانه
چا یې مخ په تماچه لکه سندور کړ
دَ کل مرغه منديل یې کړ په تورو
چه یې تل په زړو که شمله غرور کړ
نور یې تول دَ ستم کف که په هر لوری

زړه زیور یې دهر ګل له تنه دور کړ
دچمن خاوره یې هسې سیم و زر کړې
ګویا ز مکې هویدا د نس ګنجور کړ
بې نوایې په منقم کړې همه ویني
په ریاض یې دمیدة د جوړ سور کړ
ترکان کله هسې کا په غریبانو
لکه ده چه د ریاض شهر فتور کړ
غږ ده فاخته د سرو په خرګاه شو
دا احوال یې په ژړا ژړا مذکور کړ
په نیوش یې له آواز له ډیره غمه
کسی کشو ځ کنده د باغ طیور کړ
د ماتم غوغا قمریو په سما کړه
ساز په قهر کسته تار د تنور کړ
هر یاول نه ممات غوره تر حیات شه
خضر ابری په لنبه د غم مستور کړ

دَ بلبل احوال به څه وی خبر نه یم
تر ختنګ یې غم ته څیر مه له سرور کړه
که بهار دَ عمر زیب کا تر ګلونو
دَ مرګی خزان یې هم پسې مقطور کړ
هر زندۍ چه دَ هر وه زوله عدمه
په غضب یې امل مات زهر سور کړ
چا لیدلی هسې حکیم دَ خاورو لاندې
چه دَ مایې غوک دَ مرګه په شعور کړ

په خاطر یې لږ په نو کا پرها رونه
دَ هجری په کین فلک هجر زنبور کړ

---

چه یې نور اول ظهور د مصطفیٰ کړ
له هغه یې نور عالم همه اِنشیٰ کړ
د ارواح په مقام مشر دے بیشکه
که صورت یې تر صفی ورستو مولا کړ
تولد یې ځکه پس له رسولانو
چه یې تم په ده دولت د اصطفیٰ کړ
الله د کفر پریواته په زمکه
چه یې فخ د مور له بطنه په بطحیٰ کړ
هغه شاه چه د بلوغ پس فائز شه
په مقدم یې نامور غار د حریٰ کړ
ناصیه به یې چه وصله په زانو کړه
د خاطر مرغه یې سیر د طوبیٰ کړ
چه د عمر شمار یې ورغے تر څلو (۴۰)
نبوت هاله مولا ورته عطا کړ
جبرائیل یې په رمضان کښ له محفوظ

مُستقر یٔے دَ قران نازل یتمیٰ کڑ

له هغه یٔے بیا په ختم دَ مُرسلو

په نوبت نوبت وارد په دا دُنیا کڑ

له اغاز یٔے فاتحه لا په اقرأ وه

ولے ختم یٔے تحقیق په اذاجا کڑ

په دا قول دے اتفاق دَ بزرګانو

چه اول یٔے صورت کوزپه دا اقرأ کڑ

دَ دے کتابَ الٰهی چهارم نومے دے

اٰخرین حرف یٔے په سین په سر یٔے بیٰ کڑ

دَ لاهوت اسرار یٔے وَه لیدهٔ په ستر‌ګو

هغه شپه یٔے چه نیت جزم دَ اقصا کڑ

لامکان هسے بینا په لا مکان کڑ

لله عام یٔے په مکان دلته بینیٰ کڑ

په اسرار به دَ دے حال هغه خبروی

چه قِرأت یٔے سُبحٰانَ الذّیٰ اَسرا کڑ

دَ موسیٰ طاقت یې کله دَ لیدو وُه
هغه نخ چه برهنه احمدؐ راکړ
تر او وه فلکو تیر کُرسی یې پس کړه
صد هزار میله یې عرش هم تر شا کړ
دَ حجاب اثر له میانه منعدم شه
مگر میم یې دَ نامه نمائې مې کړ
چه احمد دَ احدیت په یم غوټه کړه
هغه میم یې هم دَ نام له سلکه لا کړ
مظنّه د انکار مکره په دا قول
په دا باب یې آیت گواه دَ او ادنیٰ کړ
آیات لس زره وینا یې شنیده کړ
په هر یو یې رسول قبلت د ریني کړ
هرچه ده مسالت وه که له احدهٔ
هغه دم یې اجابت په غور اصغا کړ
دَ عزّت کتاب یې راوړ له احده

مهر دار یې په والنجم اذا هوی کړ
دَ اضلال علم په دور سرنګون شه
چه احمد په مکه هسک دَحق نواکړ
چه یې پښه دَ نبوت په رکاب کېښوه
دَ نصفت په تیغ یې غوڅ سر دَعزیٰ کړ
دَحق سنګ یې په پنجه دَعدل وا خست
پرې یې مات ګردن دَلات سر دَعزیٰ کړ
دَ مُعجز په خوان یې جوړه حاضری وه
هغه وریت بره چه رب ورته ګویا کړ
څو شرف څو بزرګی یې وه دَ لاسو
چه له قرب یې تذکار چوب دَعصیٰ کړ
دَ اعجاز پایه یې هسې وه بلنده
چه مهتاب یې شق دَ ګوتو په ایما کړ
دَلاهوت خطهٔ خلوت دَ مُصطفیٰ ده
که موسیٰ معراج په وُنه دَ طوبیٰ کړ

دَ اُمت پا کو یٔے ډیر مرده زنده کړل
که دا کار اول معجز دَ مسیحا کـړ
نه یٔے کسب دَ لوستو نه یٔے جز واخست
نه یٔے ځان په مکتب کړم دَ استا کړ
آفرین دَ همغه پاک په حکمتونو
چه امی یٔے په هر یت علم دانا کړ
په غفران دَ خپل اُمت دَ گنهگارو
هر ساعت به یٔے لاس پورته په دُعا کړ
دا اندوه یٔے هاله کم شه له خاطره
چه مسرور یٔے په یُعطیك فترضیٰ کړ
دَ بهبُود تخ به ؤه نه وینی به ستر کو
چه له امره یٔے چاسرته وبالا کـړ
په هر کار چه مُکلّف شوم له خالقه
ما یٔے عُذره سَمِعنا و اَطعنـا کړ
هرچه ده په مبارك زبان وئیلی

په احکام یې اٰمنت وصدقنا کړ
چه نبیؐ ځنې ویزار وی مه یې وینم
هغه نیک عمل م یار چه یې روا کړ
چه مُنکر دے دَ احمدؐ دَ پاک دینه
تورے خاورے یې په سر ځان یې رسوا کړ
همیشه شکر واجب په مؤمنانو
چه داسې پیغمبرؐ یې رب پیشوا کړ
دَ بهشت جونه یې میل په دیدن کا
چا چه دین دَ احمدؐ غوره په رضا کړ
دَ نبیؐ یاران همه حُبله افضل دی
صدّیقؓ تن تر نمر روښن په صدق لا کړ
دَ عمرؓ عدل تر مهرَ لا مُنیر دے
فرقان جمع په جدل ابوالیحیٰؓ کړه
تن په تن مخالفانو کړه ویر شه
چه ترملا دَ شوکت سیف مرتضیٰ کړ

حضرت عثمانؓ

هر مُضل چه پهلوان وه دَ کُفارو
تر کیاه یئے سهل تُور ے ته مولا کړ

له غفوره کله دور که مغفوری کا
چه یئے نعت دَ حبیب هجریؔ آمی کړ

# ښ

دَ نګارِ یوه نخښه لیده نه شی په اخضر کښ
دَ سما همه ګلونه دَ دلبر دی په زیور کښ

تورا و ربل یې تخت مثال لکه سپهر
که کوکب غوا رے نظر یې کړه په در کښ

وسره مُهر ته یې غتې کتل محال دی
کله ستر کے برابر کوری په نمر کښ

مخ یې بدر دَ گردون دے راشه گوره
دَ آسمان تلے تره تے دی په پسر کښ

په غوږ و نو یې غُنچے کړن پهول ندی
سربادی دَ سیم نجر کا په دلبر کښ

پہ تارک یے سپین پھول ایښے لکہ تاج وی
مرصع پہ زمرد وہم دُرر دی پہ افسر کښ
رخشندہ ټیکہ یے ایښے دہ عجبہ!
دَ څلیونہ سوخته پہ دیر خطر کښ
دوارہ لرہ یے روشن دی تر شهابو
دَ کر دون لاریے سرکندہ دہ پہ سر کښ
سور پیزوان یے دَ دوکان بسری وَلی
هرګز نشتہ دا خصلت پہ سمندر کښ
د سرے نتے یے همیش وطن پہ اُور دے
لکہ خټک دَ هجره سوزی پہ شرر کښ
دَ یاقوت سُرخی یے وینے دَ شیدا دی
لطیف خان م ګرفتار پہ دا ګوهر کښ
مستغنی دی بنا اُستہ دَ چرخ لہ زیبہ
دَ طارم تزهیب یے څہ دے پہ نظر کښ
سر تر پایہ یے همہ سرہ تشبیہ کړہ

نه کاو نه دَچمن دی نه فدک په هسے فکر کښ
خاری ستر کے یۓ نه لری سپهرٔ
چه مستی یۓ دَ پیالو ده په ساغر کښ
دَ میَن مینه دَ خوږو زړو سبق دے
شپه او ورځ مِ هیره نه ده په سفر کښ
زړهٔ مِ نا ست دَ شاه په لبو همیشه دَے
لکه چې چه گرفتار دے په شکر کښ
دَ یار حُسن شُعله دره غله په خوب کښ
بندیوان همه روشن شه په عزر کښ
منت دار دَ بنا یَستو دَ کل جهان یم
په برهان مِ فلك درست ورکه رهبر کښ
دا بیان که په غوږ ونو وا درې جوړے
په رحمت یۓ به خفیر که په سرهٔ زر کښ
دَ هجران غم راته ویل کوی په شمارهٔ
گونګے طوطا مِ یۓ گویا که په ښکر کښ

روهي سيل ځ دَ مخ کاز لفې ړا غلي!
همه ورک شه تر شپې لاندِ په سحر کښ

دَ سر ويرږ هر کز مه کوه اشرفه!
عاشقان دي پروانه دَ عشق په چر کښ

---

لباسي دُنيا فتنه ده په بنيوُ کښ
هر سړے فريبنده کړے په جلوُ کښ
دَ مُراد پياله په ستر کو ورښکاره کړې
په افسوس يې کړه خارج په مسخرو کښ
ستا په خوان دَ بيغمي نواله نشته
دير تارخه دِ آلوده دي په خونړو کښ
دانايان دِ په خوي پوه ورځني تښتي
دَ نعمت هوس دِ پروت وينم په خرو کښ
چه ثمري ستا دَ باغ خوړلے نه وي

دَ طلب یے سزاوار کړه کتو کښ!
تل دَ غم سره جوړه په ژندګۍ وی
څوئے واچوی دَ خاورو په کیسو کښ
باغیچه دِ آکنده ده له اندوهه
واړه زهر دِ موجود دی په میوو کښ
بوالهوس دِ وصال غواړی تر ابده
ته جاتی کله اهمال کوے په تلو کښ
څو دَ وصل خوشی تیره په زمان شی
هجره ته به هم څوسوه زوے لښو کښ
دَ بنادی وفا م اولیده په ستر کو
غم ستا یه څه بقاوی په امتو کښ
نکه باد دَ زلفو وصل شه له دسته
حلقه مار به کله پاتے شی په پښو کښ
قساوت دِ تل کړے چیرے پرېباسے
څو کینه لرے هجرانه په شملو کښ

طراری دِ برهنه واړه قائل دی
طُرفه داچه بیا دِ نیسی په سینوکښ
بهاری ګلونه ځورنګے تازه کړے
زری خاورے دَچمن کړے په غرموکښ
ګواره طمعه کوم له کرد ګاره
دَ فلک همه ترخه دی په کاسوکښ
عارفان دِ له نیستی هستی ویزاردی
لکه اُوړکی ترخه ګوټ کا په شودوکښ
ذی حیات دِ مسافرته یے مزل یے
هرنفر دِ بندیوان په غم شیشوکښ
واړګونه دور دِخوی شه له ازله
چرخه څه سود دِ موندلے په کږوکښ
غم بنادی په خپل نصیب رسی خاطره
څوک دَچا دَ پاره دروهی په رخنوکښ
که هرڅو دَغم وریځو تاریکی کړه

دَ کرم قمرته کوږم په اُوروکښ

هجرىؔ صبر وسیله دَ راحتونو
دَ زحمت علاج دِ نشته په کِلوکښ

---

# ع

اے چه فخر په کثرت کړے دَ متاع
دَ نیکو نو حال دِ نه کا امتناع
دَ نمود عُمرے لږ دے تر ګلونو
باور مه کړه دَ جهان په اختراع
خ دَ زمکے که فراخ دے ستا برخه دی
ستا نصیب دَ دے په نس کښ درځے ذراع
چه دِ کور تر زمکے لاندِ مقرر دے
بیهوده کړے دَ ما نیو ارتفاع،
خورمی عشرت قسمت دَ نا خبرو
غم اندوه واړه نصیب دَ اطلاع

طالبان دَ دُنیا وارہ جفاگر دی
له هیچا م وفا نه کړه استماع

لږ حیا دَ سرپیتوب له اسمه نه کا
یو په بل خواله لګوی لکه سباع

که ظاهر سره بیوړ دَ محبت کا
زړه دَ هر سړی مملو وی په نزاع

دا فریب چه نن ابنا دَ زمانے کا
روباه نه کا هسے مکر و اختداع

که سختی وینے له دهره ژړ امه کړه
باقی نه وی دَ فانی دُنیا اوجاع

اے هجری محبت بنه دے له یک رنګو
دَ دو رنګو یاری نه کا انتفاع

# غ

همیشه ږې یار زما وی په دُنیا روغ
چه یې تل ږِی نور له درده زړه زما روغ

پوه به درد دعشق بدل په دوانه کا
هرګز مه شه له دے غمَ زړه دَچا روغ

ته دَخوږو زړو له حالَ څه خبر یې
زه دَعشق له غمَ زړه کُنم دَ تا روغ

بل فګار یې تورو زلفو په سر کښینو
زړهِ م نه وه له یوه زخمَ صفا روغ

بنا یُسته که جفا کا څه ملامت دی
چه خالق یې کور دَ زړه که له جفا روغ

په ازل چه یې جفا و کښلیو ورکړه
بیا یې زړه کا دَ درد منو دَ وفا روغ

نن یې زړه په عنایت دَبوسې خوښ کړ
په وعده به هجری نه شي دَ فردا روغ

# ک

چه اُمیدِ مِ ستا دَ وصل نن صبا کَ
شیرین عُمرِ مِ عبث په داسودا کَ

نن یې غوارم په زاریو منده نه شی
وقت دَ عیشِ مِ دَ فرقت لښکر قضا کَ

دَ مقصود ثمر دَ بخت ونې رانه کړ
په ناحقِ مِ صورت سترې په ژړا کَ

په ازل چه دَ یارۍ ونه خلقت شوه
خاصیت یې دَ هجران ثمر پیدا کَ

مابه نور ثمر دَ هجر بې کُمانه
چه په باغِ مِ دَ یارۍ نهال بنا کَ

هیڅ ګناه دَ هجر نه وینم یارانو
زړه را اوکه دا فساد چه یې آشنا کَ

نهایت یې دَ هجران په تُوره غوځ کا
دَ چا زړه چه یې په بنه ځ مبتلا کَ

هغه دم یې دَ فرقت لوبه تو ده کړه
چه دَ عشق بازار یې ګرم په دُنیا کَ

هجری راز چاته بیان نه کا دَ مینې
په کوڅه یې دَ آشنا خلق رسوا کَ

په قدرت چه یې پیدا اول قلم کړ
په زبان یې د هرچا نصیب رقم کړ
نن هغه بخرې نفس په نفس رسي
په قسمت د چا بنادي د چا یې غم کړ
په جدل به نن هرګز د چا لوی نه شي
په رتبه چه ازلي رقم ځوک کم کړ
کوږ به نه شي په حسد د حاسدانو
له ازل چه یې کار د هغو سم کړ
مرګ بې واره لمن کله د چا نیسي
ولې نه پائي یو دم چه رزق یې تم کړ
د قضا رضا خارج کا له بهښت
په ګناه یې بیا لازم غریب آدم کړ

هجري آه د زمانې له زخمه مه کړه
رب فکار و ته پیدا عجب مرهم کړ

# ل

هرچه اوسی په داخونه دوبال
وهرچا ته کشال شته په قدرحال
یوطرف دامن غوارم لیده نه شی
جهان هومره لبالب دے په کشال
که هزار عیش درده بخښی سپهر
په یوه غم کا همغه واړه پایمال
نه یې بنه زمان قابل دَخورمی دے
نه یې بد ساعت لایق دَ استملال
په اند وه یې ملال مه شه باقی نه دی
په هوس یې هم هرگز مه شه خوشحال
که وصال دَ ښکلی نخ زمانه درکا

زر دِ زره په نیش دَ هجر کا غربال
اقبال نه ورځي هرګز دَ چاپه غولی
څو همراه ورسره نه کا ندِی زوال
دے پخپله ویل کاچه لا بقا یم
که معکوس کړے ته حرفونه دَ اقبال
دَحیات کوتره کوزه کا له دوره
دَ قضا شهند چه وا کا جوره بال
اژدها له غاره وه باسی بے عُذره
ماهی وه کا زی له سینده بے مجال
په بقا دَعُمر ځائے دَ غرور نیشته
لکه باد هسے ګذر کا ماه وسال

اے هجَری لکه نادان بنده ئے مه شه
غم بنادی دَ جهان خوب دے لا خیال

هغه څوک چه په فانی نعمت خاربه شول
عاقبت چمبچی دَ خاورو پرِ ماره شول
هغه تیر غښتان چه حال یئ کتاب والئ
وار په وار ذبح دَ موت په چاره شول
مال و ملک ما نځی یئ وه سپارل په نورو
ځان په ځان دَ گور په خونه کښ اوده شول
دَ دنیا په تش لباس عجب مغرور وو
نهایت یئ ارمان اوکه چه په تله شول
چه له تیرو هیڅ وفا دنیا وه نه کړه
نن پرِ ولے پسمانده هسے تا وده شول
دُنیا ناوے بے وفا ده شو هر وژنی
عاقلان یئ له دوستی ځکه ساړه شول
دَ هر فصل ګل چه وه زوول په باغ کښ
بیا هم هسے دَ خزان په وار خواره شول
اے په تش هوس غره سامان دَ کوچ کړه

خپل همزولی درته ستړی په کاته شول
هدیروته نظر کړه ریاض به خه کړے
مجلسی یاران دِ وه ګوره چه څه شول
ناوے جونه بنه زلمی مشاهده کړه
ګوښی کوښی په ګوروتو کښ وراسته شول

اے هجری بهښت په بنه عمل مونده شی
هرګز خوی دَ هغو مکړه چه کاږه شول

دَ ارواح دَ کوچ سیلی په زړه کښ زین شول
چه په زنے مِ ویښته دَ شباب سپین شول
دَ ځوانئ بهار چه وه لیښ له بدنَ
دَ پیری په خزان تور ویښته زرین شول
نور به تور لشی هرګز که دایم ژاړم
دَ شباب ویښته چه یوځله سیمین شوله

دَ هجران اندوه چه نه دی سکاره کړی
داهدِ ونهِ م دَ تن مکر رویین شول

لاړم بخت په خوب اوده شه مدت نه کا
یادَ دورِ حاکمان په زړه سنګین شول

چه تو بری یې هیڅ تاثیر په صورت نه کا
دَ آه غشي مکرمات په چار آئین شول

هسې وینې مې غم تو یې کړې تر سترګو
چه مې نسری دَ صورت همه رنګین شول

حال مې وه کوره دَ کسیو له هجرانه
په ګلزار کښ دَ سرو ګلو په آئین شول

دَ غم تخم په زړه پروت نه وی زرغون شي
چه په هل یې دَ هجران پټي سادین شول

اے هجری کښیکے هجران په دوران نه وے
له تاختونو یې په جال اهل زمین شول

# ۳

کله آه کله افسوس کله دردا کړم
کله واه کله دریغ کله ویلا کړم

خوب خندا پما حرام صبر عدم شه
تل ژړا پیهم فریاد کله هاها کړم

چه دَ زړه لنبه خروج وکا له فمه
دَ لوګی په زلفو پټ مخ دَ سما کړم

بس خروش مِ ستر کے بحر دَحبابَ کا
چه رایاده دَ شباب تیره هوا کړم

پیری راوسته هجران په زور دَ متو
ما وے زر به ئے مغلوبَ په وکا کړم

دهرم نشان ناکهه په بزیره وخوت
ځوانی لاړه په کریز زه یې دهاکړم
مخ په وړاندِ میل کا راځنی تبنستی
پیره نه کاپه ستنه که سل بلاکړم
هغې هغې خه خامه یاری وه دځوانی یې
چه خبرے له فریبه میم و یاکړم
کهے ژغ له دوکهه وکړم چه سپهره
زه دِ ولے هونبره لرے له اشناکړم
کله ور دکیلو پرانزم له درده
ملامت واړه ستم د اورنګ شاه کړم
نه دچرخ له دوره خوږ نه مِ کیله شی
نه دشاه له جوره غم نه یې پرواکړم
چه دایم هیهات کوم روغه عالمه
دفرقت په توره غوځ ځکه غوغاکړم
کشکے زه هرکز بینا په دنیا نه وے

چه په غم دَ هجر ستړګو مبتلا کړم
څوم زړه په وصال خوښ وه دَ یارانو
یو په زړ یې هجر ستړے په ژړا کړم
که بیا وُکسی هرګز دَ چاو څخ ته
کسی نور به یې په ستن سره جدا کړم
هغه دم چه مِ شربت دَ وصال نوش کړ
شنه فلک دَ هجر سم لره سزا کړم
دَ غبرا په څخ کجا وطن یې کوم دے
چه لمر دَ جدل تینګ پسے غزا کړم
ګوندِ وی ګریوان یې اونیسم په لاسو
پرچه زمکه یې په دم ګُلِ لالا کړم
نه نه لاس به زما بر په هجران نشی
مګر کور یې دَ سحر په آه صحرا کړم
ما وصال په خوب لیدۀ که هرګز نه وه
که مِ وه لید بے وفا څه یې ثنا کړم

دَ فرقت قضیه وائیم په څو رنګ
لا بهتره یې بیانه تر سرنا کړم

نه نه غم دَ هجر ډیر دے وایه نشی
حال یې زه په کومه ژبه نن ادا کړم

نه به هرو یښته هزار ژبې پیدا کا
نه به ختمه دا بے حده ماجرا کړم

له خرمنه جودانه له کوه کاسه!
په ډیر ډیر جدل لُکندِ هویدا کړم

فلک څو په ارمان بوته له جهانه
حکایت دَ کوم اول ور ستو دَ چا کړم

په داغونو مړه عشاق اوڅاره ومه
که مذکور دَ ملوکانو مهیا کړم

تیر ساعت دَ مجنون وایم له اوله
که په خوا قصه بُنیاده دَ لیلا کړم

قباد چیرے تخت کیُا افسر یې څه شه؟

که ویرانے مانئ یادے دَ کسرا کړم

رعایت یئے برهنه له فاضلانو

که سلوک یئے هویدا له اولیاکړم

دَ جهان په ریاض گُل دَ مراد نشته

طُولانی قصه به تم په دا ویناکړم

دَ فنا بنادی نصیب شوه دَ گودلنو!

زه هجری دَ غم وطن چه یئے دانا کړم

---

یوه ستړکه یم دَ کنډې بله جمنا کړم
چه را یاد ے برند ے سترګے دَ اشنا کړم

نور به تیر عمر رانه یے شی په رب کو
که نظر تغیر دَ کسیو په ژړا کړم

سر دَ عیش په رنائی راځخه لاړه!
خرمی په کوے چاره دَ دُنیا کړم

ما به کله همراهی دَ ژړنیو پریښوه
په ستم سپینو ویښتو ځینے جدا کړم

دَ ځوانئ موجونه مات کړه پسد یو
لولئ ځکه دائمی صبح و مسا کړم

چه اثر دَ سپینو او ویم په زړنے
بڼ یے لرے دم درحال لکه کیا کړم

دا اثر به پوشیده له خلقه نشی
که هر څو یے په حیله کښ اختفا کړم

دریغه څه عجب زمان وه دَ ځوانئ مے

په هوا را ځینې لاړ زه یې تنها کړم
نن م سود د ارمان څه چه پیره نه کا
که یو کف په بل وهم له غمه ها کړم
کله چا په ناله تیر عُمر حاصل کړ
که بیا آه کله افسوس کله دردا کړم
کیفیت دَ عمر یو په یو بنکاره شه
اُس به نوک دَ قلم کوږ په مُدّعا کړم
ته زیبا په کوتو راې شه مشکینه
چه اِملا انصاف دَ عدل دَ پاچا کړم
خدایګو شک ګمانی نه یم په خپل وِړ
نا پُرسه یې معذب په سالها کړم
رافضی په ګناه بند کا زدې پرېږدي
زه سُنی یې په کالو نو مُبتلا کړم
تر هند وِې سوز دَ سجن پما دیر دې
په حساب یې زه بتر تر کبیره لا کړم

وار په وار حقیقت رسی دَ بندیانو
مکر زه چه یے له نوره مُبرا کړم
دا په کوم کتاب روا دی مُسلمانو!
چه ناحق یے مُبتلا په دا بلا کړم
دَ اسلام روش که دا چه یے بادشاه کا
نو به نه جهودی بد په نصرا کړم
چه آئین مِ دِ بنه ولید کیلامه کړه
که په غاړه تور زنار لکه ترسا کړم
دَ مسجد خلق مِ داد نه کا یارانو
په دیوره به یے طلب له بجارا کړم
خدایه ما په عمل هسے مُسلم مه کړے
چه هوا دَ هند وشی مسلم ته شاکړم
عدالت همه ضعیف وجور یے زورشه
دَ انصاف طمعه جفا فریاد په چا کړم
نه پرسش دَ احوال شته نه تفحص کا

په تش خطې دَ شیعه سر دَ بغا کړم
نه یې بولم چه شیعه نه رافضی دې
په کومک دَ دوار وګرم دې فتوا کړم
نه م زور دَ متوشته نه عرض رسی
حواله به په مولا دَ بد سزا کړم
نهایت به مملکت دَ مرا دخپل شی
که رضا خپله بې روهه دَ قضا کړم

دُنیاوی خلق باطل یاری یې خامه
زه هجری په کرم طمع له مولا کړم

چه په هجر کښ زندهٔ تراوسه پایم
دَ رشتینو په مذهب کښ بے وفایم

محبتِ م اسان نه وه چه پوهیږم
ترمئین پورے خجل په دا وینایم

په اخلاص کښِ م راستی ظاهره نه ده
که م سر له تنه لرے کا سزایم

چه فرقت یئے راته اُور که وصل وُشی
دَ نا قصے مینے څه وَیار ته وایم

حضوری له هجره سخته شوه وماته
خلقه څه کړم گرفتار په دوه بلایم

هسے رنګ جُدائی مه شه له هر اده
لکه زه فلک بیل کړے په جفایم

که فراق همه سُورے لکه غلبیل کړم
چه لادم راباندِ شته څرهِ ریایم

دَ دیدن طمعَ شکی ده په کالونه

تش دمه دَ زړه کوم چه نن صبا یم
یو زمان یې خالی کلهٔ له یا ده،
بل په خوب کښ په دغه سودو سودا یم
دَ اورنګ جور اسان چه په صورت دے
په فریاد دَ فرقتونو له غوغا یم

جو دانه صبرم چرے دے په زړه کښ!
زه رُوڼی دَ یار په مخ پسے تالا یم

---

نن سحر چه مشرف په نو بهار شوم
له هوسه دَ هر ګل تر ونه ځار شوم
وَله وار م دور که دَ ګُل ترونه
تر قدم م نږ ده لا ندې ګنهګار شوم
مالی لس په قهر پاڅیده له جوشه
زه پخپل عمل دَ سهو شرم سار شوم

ناځیرہ دَ وغا هسکه نګهبان کړہ
معاتب دَ نیکو بدو په داچار شوم
عنادل یے په غوغا اغله په بیرہ
مُخاطب دَ کیفیت په استفسار شوم
سرګذشت مِ یک په یک ورته بیان کړہ
مُفصّل دَ سوګندونو په اظهار شوم
دَلالا طاقی مِ یاده په قسم کړہ
بیا دَ پسه دَ سل ژبے په دستار شوم
په خرګه مِ دَ سرولا سونه کینیول
بیاله سوه په سونکه دَ چنار شوم
یو په یو مِ دَچمن ګلونه شمار کړہ
له هغو دَعروسانو په نکار شوم
دَ فاختے ژغ مِ اوښار په داروش که
سوګندی دَ درے زرکه په رفتار شوم
مکرّر مِ جلوه یاده دَ تیکے کړہ

هم گویا په شرافت دَ چندن هار شوم
دَ بنادی دار به مِ یاده په قسم کړه

پیاپے په دړه غاړه دَ اختیار شوم
دَ تصدیق گوتے همه وو په دیده کړے

قسمی یۓ دَ مرغانو په چیغار شوم
په مزید یۓ دَ بقا هسے گویا شول

چه حیران یۓ دَ خیر ړمے په وقار شوم
دا احوال چه مِ په ستر گو مشاهد کړه

زه هم زر دَ شرفا په تذکار شوم
لائق نۀ دَ سوگند بل نه وَه په زمکه

چه په جونو سوگندی دَ کړه مار شوم
په دا نام مِ ذکر ختم دَ سوگند که

مُشرح له حقیقت په گُفتار شوم
وے مِ گُل لکه لیلیٰ زه یۓ مجنون یم

پلیده یۓ له شعوره قیس وار شوم

شاخ دَ گُل په سهوه مات زماله دسته
ترابدهٔ زه خجِل په داکردار شوم
بلبلانو چه تقریر زمانیوش کړه
مؤقرورته علن دَعشق په کار شوم
په خورنګه یې توبیخ دَ مالی وَه که
له شِدّته خلاص په سیله دَهزار شوم
نورِم سیل دَ ګلذار که بے زحمته
عنادل همه لښکر زه یې سردار شوم
هر بُلبل دَعشق سبق اخست په مینه
په بیان دَ محبت هسے اوخار شوم
ناګهانه دَخزان لښکر مے راغلے
له اثرهٔ یې نرے لکه یو تار شوم
لاګرمی دَ مجلس نه شوه ترکماله
په رحلت دَ ګُلو سل جانه فګار شوم
دَ دُنیا بنا دی له غمه سرهٔ جوړه

ما نظر په گل کا وه زخمی په خار شوم
چه پروں م د یار وصل ته هوس کړه
ن یې ځکه د فرقت سره کنار شوم
سرانجام د ټول مجلس سپیم ځکه
چه سپند غوندے جدا ځنې په نار شوم

عنادلو مخ په غره او نیوله تاوه
زه هجری په ژړا سر د هند په لار شوم

---

بو د اصل م پښتون ولے خټک یم
سر تر پایه له نادره فکره ډک یم
له خټکو حسن خیل له هغه کوره
په نسب سکه ورارۀ د میر بازک یم
وخولي هنر م څو دے تمیز بویه
په کالو مشر دے رور د خان برک یم

نام وننګ مِ پسې شا قبله مِ نس دے
په حرص ترجهان تیر لکه بارک یم
دین دنیا مِ په داغ همه ترشا دی
زه بنده دَ قاب پلاوه دَ اتمک یم
رګ وخون همه دَ توم وه جوش یۓ وکړه
چه جنګی له سکه ورورړه په بسانک یم
نه حورا دَجنت پیژنم نه جونه
په هوس یۓ سرشندم یار دَ غولک یم
تر کولک چاپیره مه ګرزه عابده
ګنه خون به دِ پغاړه شی توپک یم
خلوته چه حصه غواړے خبر نۀ یۓ
زه پدر په نان شندم هغه مردک یم
نه همت دَ باز لرم نه سونا ګیر یم
جت آسا په چتیوسر لکه چیپک یم
لمامه غواړه هنر دَ شهسندانو

کـه نامهٔ م میر دَ باز وه مشکـیرک یم
دَ بنو طمعه لمامه کوه درویشه
دا خصلت په سما کین زه په سمک یم
بازه ته چه بیغ کړے مرګ دِ روادے
زه په ځان دَ امیرخان صوبه متک یم
قادرخان دِ عز ورنه که په بولاقو
ن په تاخت دَ جیش سرلکه اوزبک یم
که غلیم رستم وګیو دے دارم نشته
هسے برند دَ نری والو په کومک یم
دَ نیکونو مقبره م کره هـمواره
کنه سر دریسو نا مضبوط کتک یم
په قطار وکولو راغلم له عدمه
هم له دے سره یاالاشم که زیرک یم
دَ بهبود طمعَ له ځانه خطائ دکا
چه یرک له کوه کردان مشترک یم

دَ وروئ نامه راپورے دَ کوونکی ده
زه که هرڅو مبارک لکه بوبک یم
هسے زشت عمل مِ اولید له ناکسیو
چه له کرکه لیده نشی نه پرِ شک یم
نفرین سل ځله په دوارو دَ بهرام شه
لا دِ ما په زیره هم چه یے اخوک یم

ما هجرِی په هرطرف بے سرو پایه
دَ نصیب په چوګان بند لکه پتک یم

چه نیولے یۓ دَ مینے په تاوان یم
تینډک ترلے یۓ دَ زلفو په ریسمان یم
چه په سترګو یۓ مین شوم پرېږم وژنی
هسے هم مسلمانی دَ مسلمان یم
په غوښتو یۓ دَ چپ سترګے کړے کوږے
ګستاخی مِ وه کړه ډیره پریشان یم
ما یۓ لاس نیوه په ویره خوله یۓ راکړه
دَ دیلی تر بادشاهی نه پرے شادمان یم
په ستم زغمل یۓ هسے سترګو شوخ کړم
چه خیر په ظُلم کله دَ آسمان یم
هیڅ له مرګه ویره نکړم ورته ګورم
زه بلا مین دَ شوخو په چشمان یم
خودبخود زه هسے نه سوزم دلبره
چه محتاج دِ دَسرو سترګو دَ دامان یم
نوے طرز مِ په پښتو ژبه کښ وکړه

دَ افغان په شاعرانو کښ سلطان یم
په پښتو کښ چه څوک دم وهی دَ شعر

خوشه چینِ م دی دَ خیرے زه دهقانم
دَ پښتو ژبےِ م اٰب ورکه په شعر

دَ فارسی شعر چه نه وایم افغان یم
چه زما متاع څوک خپله متاع نکه

اُمیدوار دَ دے خبرے له یاران یم
ما دَ عجز سبق هسے دے ضبط کړے

چه اِنځور دَ مهوِشانو دَ کمان یم

ترخپل خوی پورے ناچار یم قلندر ره!

عاشقی توره بلا زه یے خواهان یم

ځکه تل دَ زړه له جوړه په فغان یم
اسیر کړے یۓ په چاهِ زنخندان یم
دَ خلاصی طمعه له چا وسیله څه کړم
کښیوتلے دَ خونی څح په زندان یم
مګر یادیۓ زُلفے راوړے په دالوری
منتظر یۓ دَ عنبرو په ریسمان یم
تل ژړا ځکه کوم دَ شاه له سترګو
چه ویشتلے یۓ دَ غشیو په کمان یم
نه نه جوړ یۓ دا نه لکه ِم ؤه وے
په وئیلی بیت یۓ زړ ځله پښیمان یم
مستے چشم یۓ ترکان دی قصابی کا
محتاج یۓ زه ولاړ مز دَ قربان یم
دَ جهان ښکلی ِم خس شو په نظر کښ
څو ناظر دَ مستے شا په دوه مرجان یم
چه په تاب یۓ زړه او تن پاره پاره کړ

دَ بنه فخ ضیا دَ او بنمے زه کتان یم
شکیب خشکل ستاله دره کړم دلبره
محبت پلاس بیولے تر کریبان یم
که یے زړه په ستم نه دے زما وَړے
په جناب یے ولاړ ولے هر زمان یم
دَ بوسے په خواست یے قهر راته وکړه
په غضب یے لا تازه دَ گُل تر شان یم
په مستی یے نته ماته کړه یارانو
په ناحق یے زه بیولے په تاوان یم
دا مهینه قصیدهٔ چه م انشا کړه
عجب کړے په اشعار قلندر خان یم
ما یے شعر هسے ډک له فخره ولید
چه حیران یے دَ شاعر په دا گمان یم
هُمره کبر بد الیٔ کا پخپل شعر
والیٔ بنه په دا هُنر دَ شاعران یم

دَ پښتو ژبه مِ ناوے کړه په نظم
د مغلو په شعر هم عالی مکان یم
خوشه چین دَ پښتو ژبے شاعران دی
زه دهقان دَ بلاغت فیض رسان یم
دے عطا دَ ورو کا وانے یۓ نشته
خندا اوړے په خطا دَ دے دهقان یم
سر تر پایه مِ یۓ کشت همه پره کړۓ
نه شکی په یو خوشه نه یۓ په دان یم
دَ پښتو شعر یۓ سم له دیرونه دے
دَ مغلو شعر لا پوی حیران یم
یا شاعر چه دا غزل وایه کیفی وه
یا یۓ زه خوبۀ ته نه رسم نادان یم
شاه دَ شعر په پښتو ژبه هغه دے
چه یۓ زه حلقه بگوش دَ شاکران یم
دے په ملک دَ نظم شاه باور یۓ مکره

که مرزا دَ کوره زغ کا چه سُلطان یم

ځو میړی غونډ یے پروت یم په جوس کښ

شاعران همه میږی زه سلیمان یم

ما هجری ته یے هجران دکن لمبه کړه

ځکه تل دَ یار له غمه دُرفشان یم

---

هغه ورځ دَ هجر غم له زه سزا شوم

چه له یاره په ژړا ژړا جدا شوم

ما هله مام دَ ځان وه کړ په وینو

چه اټک وته مے شا کړه په ژړا شوم

اُس به څه دَ وطن کانی بوټی ژاړم

دَ رخصت سلام مے کړے تر بدا شوم

یو ناوک مے په دل لګ را ور له روه

ځار و جارم دَ باغ وه نکړ خطا شوم

په محنت مِ یو ریاض جوړ کا په دهر
لاِمِ گل بوے کړے نه حینی جُدا شوم

لوے فلک په خنداشین شه له هوس
چه هودی جبل په مخ زه ورته شا شوم

یو پار وپه دکن نشته چه مِ دم کا
گرفتار په گنج وکاو دَ اژدها شوم

دَ هوسی په بنکر برات دَ وصل مخ شه
چه راپورے په ندی دَ نربدا شوم

دَ وصال و دلِ مِ گنج پرِ نازیدلم
تار ومار همه دَ هجر په وغا شوم

نن به څه له هجر زار کوم وچا ته
ما پخپله غم خرید کو چه آشنا شوم

بس غبار دَ هجر بخت را ځخه کم کا
په بلل بلل یے ستړے په صدا شوم

زه خټک د یار طلب کړم موندہ نشی
له ناکامه یې له غم سره ملیا شوم

# ن

چرته وُلاړه هغه بنه مېن یاران
چه په تل وُو په مجلس سره خندا ن
دَ هر یار په مکان ورشم نه یئے مومم
ځائے ئے وُه ویم دَ نا ستے ولے وران
په هغه ځائے چه مُ تل سره خنداکړه
تن سیلاب کړمه دَ اوښویئے روان
ته په کومه طمع هُمره بیغمی کړے
چه لرے په مخکښ کور غوندے زندان
لکه ته چه یتیم پاتے وے له پلاره
ستا به هم شی خُوئے هسے یتیمان

دینوی چارے صبالا خوب لیدهٔ دی
محبت یئے لیونی کا یا مستان
تا به کله زندهٔ پریږدی په دُنیا کښ
چه یئے بو تله په نوبت ستا بزرګان
ګوردَ حال په ژبه تل والیُ وتا ته
بندهٔ څوبه ته بنادی کړے په جهان
که هوس په طویله کړے دَ تازیانو
کښے تول کړے طمطراق لره فیلان
که دَ جاه په کروفرهسے غره شے
چه سیال نه ګنړے په مرکه څوک دَ ځان
کله کړے په طلب دلبرے غوارے
کښے لاپ تماشه اوکړے دَ بوستان
څوبه سیر په صحرا کله دَ باغ کړے
راشه وَه ګوره نتلی مرګ اخوان
تن په تن یئے برهنه زما لقمه کړه

ترمے یئے راینوه همه شوکت وشان
چه ترتا اوّل یئے کړمے دا هسے چارمے
واره نن زما په نس کښ دی پشیمان
ترایده دِ ځائے زه یم دَ استوګنے
لما ولے کړمے آخر هسے نسیان
یو نفس ناسته زما دَ خُنکه وَه کړه
چه درو ه بنیمه همزولی عزیزان
دیربه اوسے په توره تاریکه کښ
بنایسته زلمی بے وسه بندیوان
یوے نه وُر څه حاصل له دے جهانه
مګرسل زره داغونه دَ هجران
دَ سکوت مهرِ م جوړ په هسے خولو کړ
چه بلبل یئے شاګردی کړه دَ زبان
ترکیدلهِ م نن بتر کړه که یئے کوړمے
لوے همت چه یئے کیدړکښل شیران

چه هرګز یې غسل نکړې ګلابو
اُس یې حظ په خوبنو کا زما ګرمان

دَ شاهانو په سر ګرځه ادب مکړه
میر تزک ورسره نشته نه دربان

په جهان کښ ستم ګروه لاس دَ بر دے
چه رضا هسے یې نسه تر ګریوان

چه په تن یې دَ ګل پاڼے دُرشتی کړه
په حیات به تا بلل پسته دهان

هغه تنګے خولے یې دِ کے دی په خاوره
ګوره اُس زما په نس کښ دلبران

لکه زغابنت یې په حیات دَ دوی کتونه
له دیدنَ به یې نن شی ګریزان

اُس که ستدَ بوسے وه کا په زاریو
ترے به او تښتی بیشکه عاشقان

له دروغه ډیر بعید وینم بیشکه

دا مه ذکور چه مُفصّل کړه ما بیان
که مُنکر نه یې په زړه له دے وېلو
تا ر دِ ولے هومره اوږد کړ دُکمان؟
چه ایمان په دا لرې هوس به څوکا
زه هر کور په دا خبره یم حیران
دَحرص نیلی دِ ډیره سرکشی کا
په هر لوری بیهوده وینم دوان
دواړه والګے یې دَصبر په لاس نیسه
دراز نه دے دَشیرین عمر میدان
آرائش دَ بیوفا کور و نو مکړه
قدیمی وطن ته استوه سامان
دَجهان نقش و نګار همه باطل دی
فریب مه خوره په زینت دَاین آن
توښه کړه دَ ښه عمل فایدهٔ نه کا
پس دَ مرګه بیا دَ ښه عمل ارمان

غنیمت گڼه فرصت زیرمه دځان کړه
مرګ رخصت دَ امان نه کا یو زمان

ځامن، لوڼه عزیز کله پکار یږی
هلته مه شه مسلمان ته مُهم ګران

دَ هر یار موت جرس په تا خبر کا
په معنویٔ نه پوهیږے ته نادان

دَغفلت په خوب اوده کله به ویښ شی
رفیقان دِ پسِ لاړه دَ کردان

دَ احمدؐ رسول په حق دِ وه یا ربَ
خطا مکړه دَختک بنده ایمان

بلکه دا دُعا یکسانه ده په وارو
ایمان مشه ګُم هر ګز دَ مُسلمان

دَعمل پتی دِ لوړه په ګناه کړه!
هجری وینځه یے دَ اوښکو په باران

# و

یارہ راشہ پہ یوه وطن ماوا کړو
له خاطرۀ مُبّرا او بِزده رجا کړو
لاس په لاس به سره کرځو غنیمت دے
صلاح نه ده چه دَ نن طمع صبا کړو
له ازلَ شین سپهر جفا کار دے
خطائ ده که نن مو بِز طمع وفا کړو
څو یاران لکه رمه هسے غنچه وو
دَ هجران لیوه په زور سره جُدا کړو
مجلسی یاران تو کوچ وَه که له دهره
موږ به څو حیات آخر په دا فنا کړو

څوک به خشکله امید دَ عیش کاندي
په دا داریٔ همه غم له پیدا کړو

یاره ته به هجری پرِنه بنوے په روغه
په ستم سره بیل جور دَ بادشاه کړو

# ۵

هجره څه خو فرصت را زړهٔ م پاره شه
سر یې لاندې ستا دَجور تر اره شه
دَ یارا نو جدائ مثال چاره ده
دَ زړهٔ سرهٔ م پرِ قلم لکه تره شه
دَ وصال دولت به څوک سلامت یوسي
بیلتون سل زره لښکر پسې پره شه
را شه یو خُل ختک کوره په دکن کښ
چه له هجره دیر ناچیز لکه ذره شه
دَ یار یادِ م قامت هسې پیچ وتاب کړه
په دا کار مثال دَ زلفو په طره شه

دَ هجران خمار یې زړه پهٔ سر کښې کښینی
چهٔ شراب دَ وصال نوش کاندې غره شه

هر ساعت یې د ستم پهٔ دارو نیسی
دَ یار یاد لکه لیوه هجریؔ بره شه

---

راشه مکړه اے خاطره جګی جګی
زړله سره بیهوده فکر جدا کړه

دَ غفلت پهٔ خته که کړے دَ مال یې مینے
که مردانو غوندې مرد یې ورته شا کړه

دَ هوس بُتان دِ بس پهٔ زړه میشته دې
دا همه پهٔ توره غوځ دَ لا اله کړه

رب ویل کا ماته لار د رازه نه ده
خو یولام دَ مال عدم بقیه ما کړه

مرګ مهلت له هیچا نه کاندې ختمکه
خو لا نه دې مخ نه زاد مهیا کړه

مهرکان سحر پیدا که یې هنر که
چه په دم یې شین لباس دچمن زر که
زرکشی زیور یې روغ کړ لون لون
په هنر یې شرمنده پخته زرگر که
دچمن جونه یې ناوې کړې له خیره
هر اعضایې منور په سره زیور که
دزینت لمبه یې هسې شوه بلنده
چه ابرش یې شین سپهر په اخگر که
بازیگر سپهر جوش وکړه له درده
په دا حالِ خبردار نحس اکبر که
هغه نحس دغم تاخت وربانډِ وکړ
دریاض ملک یې همه زیروزبر که
له یوې یې غوتیالې په جور کونړ کړ
له دوېمې یې په زور اخذ بې سر که
په تاراج یې دحسد لښکرې هو کړې

نه یې چاته زر معاف نه یې کوهر که
هره ناوې چه رنګینه په کهنه وه
دَ ستم په تیغ یې بیل له تنه سر که
هغه ناوې چه ولاړې په مخمل وې
په عوض یې دَ مخمل تراب بستر که
چه زهره په دا ستم شوه خبرداره
په دا حال یې بخښنده مهرخیر که
مهربان مهر له ډیره عاطفته
اماده یې په رکاب څره لښکر که
دَ یوسفؑ غوندِ له دلوه هویدا شه
یونسؑ وارې دَ ماهی نس مُستقر که
شمینه منالِ واخست له ماهی نه
وبره ته یې ځان جوړ لکه چېر که
دَ شرف په کرسی کښیناست په برکښ
له اعلیٰ یې واسفل وته نظر که

رنګارنګ فیض یې واچوو په سیمه
آبستن یې په اصلي لعلونو غرګه
له بحاره یې بخار په هوا خور کړ
په نیسان یې سما تور لکه غبرګه
سفلي مور علوي آبا کړه آبستنه
څوې لونوې له نسه سربدرګه
ؤ نو څانګې پوشیده کړې پتو پتو
دَ هر برګ شکل مجنون لکه نشترګه
سروِ سل لیندې موجودې کړې له تنه
زروکه کنګل په لاسو نیلوفرګه
مګر نیت یې دَ جنګ ریز دې له حیله
چمن هر څوې بنکاره لکه خنجرګه
هسې شنه تیغونه یې وزول له زمکې
چه یې باغ کان دَ فولادو سر په سرګه
رنګ ریزان دَ بهار راغله له غمامه

شین ریاض یې مرصع په ډېر اختر که
دَ زینت اسباب یې جوړ که سر دَ سره
دَ چمن اولادې زیر خُینې احمر که
ماه چه نیت دَ وغا ولید له ریاضه
له هیبت یې په لاس دَ هاتی سپر که
داغو غاچه یې ترغوږ شوه له رافته
په تالاب بانډِ حاضر سپنځر صرصر که
خار وخس یې کناره که له عذاره
په جوشن یې پوشیده مخ دَ شمر که
قمری پښې په حِنا سرې کړې سترګې تورې
مبارکې دَ هر طیر دا اختر که
دَ سرود فتوه طلب کړه سرګو څیو
قاضی واف یې مهر پورې په محضر که
دَ بنادی ه غزلې دوی کړې په سند رو
دَ شاخ سره یې نشیمن لکړه منبر که

وے یے تل به تماشه دَ بهار نه وی
په دنیا یے جیش غم عیش یے کمتر که
نن زینت دَ چمن کوری بلبلانو
چه تازه ملو په عون راته ثمر که
نو بهار خزان به روغ نه شی په دور
رب یے حد دَ عداوت روزِ محشر که
دَ هر شی عمر بهار دنیا ریاض ده
په بهار پورے خزان یے مقرر که

دَ هستی ونه چه هسکه شوه ختکه،
مرگے دهر ورته جوړ لکه تبر که

---

دَ صفی اولاده مت کانهه یکباره
کار زما په رضا نه دَ خدائے دَ پاره
په احوال مې څوک نظر دَ عدل نه کا
هر زمان ژړا کومه لـه ادواره
په گردش یې پائمال دَ حوادث کړم
لاس مې نیسی نصیبه دَ شنه عذاره
چه یې ځن په بنده کا دَ گردون دور
آمان وشه دَ هرچا له دے ناتاره
هسے چارے په ولینې والی وکړه راشه
چه په خواب را ته هرگز نه وه د وځاره
دَ فرقت یوے مې دل هسے سادین کړ
چه یې بیخ دَ عیش یو ړ دَ غم په سپاره
دَ لیلیٰ بیلتون دَ قیس هسے نه وه
لکه زه یې په هیواد کړمه لـه یاره
فرهادیو ځل دَ فرقت لبنکرو مړکړ

مابې دوده هر نفس وژلی دوباره
آدم خان له دُرخو کله هسې ورک وه

لکه زه یې له دلبره کړم هُشیاره
دوره ته به دوه مېن سره پرې نه دې

چه نازو دِ له قطبؒ کړه ویزاره
چه یې تل دَ مېن یاد زما په زړه کا

لیوه کله هسې کاله خپله شکاره
دَ یعقوبؑ له باغ کُل سپهر بېل که

په ژړا یې سترګې وَه ویستې له کاره
همه تن به یې زلزل لکه پاره وه

که زما په دوه جُدا وې له بهاره
څوک دِ نه شی هسې کُم له خپله دیسَ

لکه د هر زړه بعید کړم له دیاره
دوباره به دَیار دید مُیسّر نه شی

چه یې بر دَعیشَ واخلم له کناره

دَ یار وصل پسما اُور دَ فرقت بل کړ
ناخبر دے خرم وکاله دے نا ره

نن چه زه ماتم کوم دَ یار له هجره
بلبل کله هسے ویرکا بے گلزاره

هره ورځ به دَ ځیګر په وینو سور کا
نوبهار که هسے دورشی له هزاره

که دَ غم صورت م او وینی په چشمو
صلابت به یے ساکت کاله ګفتاره

څوم حال دَ هجر ولید په دُعا یم
چه په غم یے څوک اخته مکړے ستاره

چه دِ هر عیشِ بهار په غم بدل کړ
هسے وے کړے فلک کج رفتاره

مشک ناب م دِ ابرش کړه په کافورو
نور دِ بیل کړه دَ زلمیو له قطاره،

یو فتنه دِ اوده نه وی خود پرسته

لا بتره راته بله کړے بیدا ره
لکه زه دِ په آتش دَجور وریت کړم
سَزا بیا موے جابره شــهریاره
فراق وَړے نُور به رائیشی په سترګو
که باد شم دَعرق راوړی له نامداره

چه ګُل ګشت دِ په لمن دَهجری یارکا
نوبهار دِ پرِ مرمشه کـړمـاره!

---

چه دِ مینه په زړه ډیره دَدُنیا ده
اندیښنه دِ بے هوده واړه خطا ده
که دَ زړه صفا دِ شته باوربه وکړې
له دروغو ډیره لرے دا وینا ده
لاس په لاس به دِ شی خُیو وته پاتے
لکه تاوته چه پاتے له بابا ده

ته چه تل په نسل ناز کوے غریبه

ناز دِ واړه خطائی اومه رجا دَه

همه مرګ لره پیدا دِتا پرے څه دی

خیال دَموت پرِ کوی چه یے غزا دَه

که ورغوے دَمری له درد ه ژاړی

دَقصاب یے وکُشتن ته تقاضا دَه

چه هلک له نسه پریوځی بے خبره

په اُوبنړی قدم یے تل ځکه ژړا دَه

وائی دا په هسے بد ولایت راغلم

چه کرده یے سر بسر واړه بلا دَه

څوک چه درومی له فنا نظر دِ نه وی

په وَرستی نفس یے تل ځکه خندا دَه

وائی شکر چه په هسے مزل راغلم

چه له خیره یے مملو همه فضا دَه

اُس به څشکل د انا طمع دَخوشی کا

چه دُنیا په ازل غم له پیدا ده
په دا باد عُمر به څه باور دَ چا وی
چه بقایئ ډیره تنده تر صبا ده
نهایت په هر بهار پسے خزان دے
دا وینا کله نهانه له دانا ده
په زینت چه نخوت کا آخر یئ څه شی
لکه گُل قبایئ خاورے بیا هبا ده
حق ناحق گردون یئ رانیسی په جور
ځوانی کله له چا لاړه په صلا ده
په یو دم یئ فلک ورانه پسندل کا
که دَ تورو زلفو بس ډیره هوا ده
چه تر بد و تل کینه کا له صالح
هغه زشت مزل که وایئ دا فنا ده
دا غزل قصیده جوړه په کم کسی شوه
سنه غین او قاف یئ نبنه دَ النشاده

سخندان دِیے شماره کا تر آخره
په شل دوو حرفونیے بن هره مصراده
دَحساب په تراز ودِیے موزون کا
که پوره په عدد دوه خیزی مجرا ده

هجری څه به زره ترپے په دانا بوده
ترلالا یے لا اومه دَ بود پستا ده

مرده دِل دِ حیات مُومی له گفتاره
دَ قالین اوده پرِ جل کړی بیداره

بادشاهان په مال و ملک متکبر دی
پخپل حسن ته غره له شهریاره

دَ ځیګر په داغ رنګین ګلِ لاله شه
تل همسر وه یٔ ادب ستاله رخساره

ننداره دَ باغ کوی برُقه پسر کړی
چه ګل بوُی په دماغ صاف لری یکباره

شمشاد سرو دِ له قدهٔ نه خجل دی
زرکه لا ده شرمنده ستاله رفتاره

مشکی زلفو دِ سونا کره منفعله
په لکی یٔ کچك پتاله دَ ده ماره

په نخوت طاؤس کتے په اوردِ وسه
تش صورت په تیکه ناست دَ مخ له تاره

نسیم ستا دَ تنه بوُی په چمن تیر کا

غُنچه فم په درود واکا بے اختیاره
چنارونکی دَ شوند ورنګ سراسیمه کړه

لاس دِنیسی کله پښے کوره دَ داره
که مقصود دیے ستا دَ پوزے نته نه وی

مرغلرے به را نغلے له بنجاره
دَ خوبے خبر دِ هر چرے روښن شه

په هوس دِ لعل راغے له کوهساره
مخ دِ بدر مهر نمرا ور بل فلک شه

په شماره دِ ستوری زیب کوی بے شماره
کرن پهول دِ مشابه له سرو پادی

دَ سیس پهول په دیل وردی خوقطاره
دَ ټیکے مچلی رسته لله میزان دے

له یاقوت دَ عالم په زړه افګاره
که زینت دَ مخلوقات همه محضو کړم

واړه هیڅ دَ دلبرانو تر سنګاره!

چه عاشق معشوق په دا شوق پیدا کړې
خدایه بیا یې بیلوې دَ څه دَ پاره؟
دَ بهشت حورې که لږ دَ دې په رنګ وې
بنایسته به چا بیوې له دې دیاره

یوه شپه خټک په خوب لیده په خوا کښ
لا ترا وسه یې ګل بوی ځي له کناره

---

چا پیره زلفې زندی تخ دِ ګلذار شه
ما ګلونو ته کتل زړه ګرفتار شه
څه عجب لکه ځنځیر سره حلقې دی
کافور ګل دَ مشکو غص نو بهار شه
ته دَ ناز رفتار کوې په چمن کرځې
په ادب منګولې وادرته خیار شه
سیاه درنګ کاکیتې شی ګل صنمی

تا له شاخه بیلاوه په کف دِ خارشه
آئینه دِ روبرو همه کُلذار کړه
مخ دِ گُل سائے و گل ترِ نمودار شه
دَ سُرو زرو خوشبوئی له اصله نه وه
تر صندل بُوئ واخلی چند ښار شه
سره لعلونه دِ حجاب په مرغلرو
گوره مینه دَ سپریے گهربار شه
صفا وُچولے دِ ترش وینم دلبرے
په جبین دِ گونډ وزن دَ خال بار شه
ستا دَ مخ په لمبه زه محبت وسوم
تکبر دِ بولاق که څکه په ښار شه
زما منع ستا له لوریه ده مشکله
منصور کړه دَ عشق خبره څو په دار شه
راشه څه خو دَ روحی خبر تحقیق کړه
چه بے تا یے عمر څرنګه هشوار شه

صبا هسې رنګینه دَ دُنیا دا اسار کـه
چه زیبایې دَ بقا تر مرغزار کـه

نسیم ژغ په هوا اوکه چه نوروزشه
په هوس یې زمکې وا دَ زړه اسرار که

په دا زیری دَ خزان نتلیو جونو
لون لون اماده نوې سنګار کـه

دَ باغ نس همه دُکان شه دَ ګوهرو
بې قیمت زمرد راغ و کهسار که

چنبې زیر ګلونه وُزوُول له تنه
هریو ډکې مونه دَ چندن هار که

راشه ګوره شګوفه پښاخ دَ وُنو
چه زینت یې وچ لړکې دَ دُرو تار که

په دیدن یې شتاب بویه طالبانو
انارین په څوکه بل دَموسیٰ نار که

توره شپه یې منوره تر صبا کړه

هر غندل چراغ په کف دَ لالا زار کړه
بهاري پرنده تول په چمن راغلل
نشیمن دَ ځنو نار ځنو چنار کړه
دَ وصال په جنت ګډ پس له هجرانه
په هوس خیزونه که کم یې قرار کړه
ګه جسته جسته په بڼ دوَنو راشي
ګه یې خوش دوَنې سر لکه منار کړه
ګه په نس دَوَنې پټ شکر د
له هغه چه یې زنده مُرده بهار کړه
تمیز کله د واف کیږي له طیورو
هر طائر په سرود تن لکه هزار کړه
له طوطا فاخته تیرې کا په وَیلو
په چغار و هزار پرڅې دُسار کړه
په دم دم ذکرِ په مرې بورانائی شته!
په شور لکه ندا ګانې یې منقار کړه

هر یاول پگُنگو زیر سیر دَ باغ کـه
طوطی تن په سالو پټ دَ هندو بار کـه
هسې گشت په ریاض کا سندې بولی
گویا جو نو سیر باندِ په گلذار کـه
ما وې خال وخط دَ یار په ؤنه وینم
چه بورا په مینه چپ گل دَ انار کـه
سبزه پرته چه دا حال مشاهده شه
په حسد یې دا بیان دَ زبان یار کـه
دَ ختن نا وې پیدا شوه له انارهٔ
حبشی قُل یې جوته سیب دَ عُذرا کـه
میناڑغ ورباندِ ؤکه ظاهر بینه
سزاوار دِ په دا قول ځان دَ دار کـه
که بَورا په تنه تور ذره یې صفا دې
نوم یې ځکه مشهور دَ عشق په کار کـه
هغه دم چه شیرین تله له دَ جهانه

نه چا تن پسے فدا نه یٔ بیمار که
چه فرهادؔ په داغمگین قول خبر شه
سر یٔ دوه پارے دَ تیشے په گذار که
رنګ وذات یٔ کله سم وَه له خسروه
محبت شیرین ته بنه والا تجار که
ده چه بوس دَ ګل کاوه نظر یٔ نُوه
چه ترچپ یٔ اول تن تروٴنے جار که
ته چه نه یٔ لاخبر دَ عشق له سره
ګر حٔه خاورے دِ پسر عمر دِ خوار که
په هجرت یٔ حزین کله نن حسد کړی
چه فلک بورا په وصل برخوردار که

هجرؔی حال دَ منصورؔ کله سرسری وه
دیرے مینے ژغاوه ځویٔ په دار که

ستا مسکن جبل درود پما عسل شه
لتا دور عسل دکن راته حنظل شه

خوب خندا قرار به څو کوم بے تا نه
چه بیلتون دِ راپسے لکه مغل شه

هر نفس مِ لکه ستن په زړه چوکه شی
دَ خنرو تر ستم تیر هجر بیستل شه

مخ په مخ م وغا کړه دَ شاه له جوره
ولے هجر منهزم کرم چه یے مل شه

دَ خوشی منزل مِ هسے شه له هجره
لکه پرو بال دَ باغ له دیه چل شه

هر زمان دَ زړه په یاد ورسره مل یم
که بدن په ناچاری لتا نه بیل شه

سر وتن یے دَ انصاف په توره غوڅ کړه
که خټک دَ یکرنگی په دود کبن غل شه

دَ خاطر جُره یے ستا په لورے کرځی

تل په تور دَ هوا کا ځلے راځکل شه
لباسی که دِ یاری په دروغ نه وه
چه په کال دِ خط راته ولے ارجل شه
مګر ځکه دِ ترشا کړه دیره مینه
چه حائلِ م نزبدا دَ مالوے تل شه
زه په څه ماهنه له یاره کړم وکړیه
نن رواج دَ اشنایی وارځه دَغل شه
لا دِ لاف لباسی وے نیت دِ نور که
یا م عقل سیده نه وینی احول شه
دَ زیری کا کا په کور لاسونه کیږ ده
قدیمی مِهر دِ تسته که اُس بدل شه
یو ځل مخ په مخ قیصے له یاره وکړه
له کیلومِ لبالب دَ ذره بغل شه
نهایت به همه تن په لمبه وریتا کا
دَ غم اُودِ م په سینه کښ هسے بل شه

خوبه کړ ځم سرګشته په شپه دَ هجره
چه په لاس مِ دَ وصال خُفته مشعل شه

زړهِ مِ هسې سحر کړو چشمو خپل که
که هر څو بنایُسته مخ راته بسمل شه

نور اسباب دَ حُسن ځیٔ له هغه مخه
په ما تو یو چه بدل دَ تخنیو ول شه

صد هزار بُتان مِ اولیده په سترګو
دَ بنه مخ کاسه موجوده آبِ تل شه

چه په سر یې نشان وخوت دَ سندلو
په لیده یې تفرقه مشکی اوربل شه

دَ ثبات قدم یې ټینګ په مکان نکه
له جبینه قراری که په کاکل شه

غلیمان په قابو کله کوتاهی کا
خلاص دِ شاه دَ بنا پیرو به دیر جدل شه

شاه دَ حسن په غارمه تکل دَ کوچ کا

چه خراب دا وربل چتر په سندل شه
سل رنځونه هویدا خلق پرِ وژنی

سور صندل په ازل حُسن ته اجل شه
دَ بنا یُست نوبت آخر شی پسندلو

حُکه وار دَ صندل پس پیکے اول شه
جُونه ولے هومره غاوُ کا له دریو

که سے نه په ملک دَ زیب صندل خلل شه

هجری چاچه په بنه مخ ستر گے خوږے کړے
خوږ جګر دَ تاسف په ژرنده دل شه

---

دَ هُنر بحر چه تالیدهٔ سراب شه
هغه بنهر دَ عظمت کوره خراب شه

هغه تن چه همه کان دَ مُروّت وٙه
تن په خونه دَلحد موتے تراب شه

څوک به کیدی تن په روه دَ هنرولٍ
چه معدن دَ خوبی مات هُنر کیاب شه

دا دَ غم قضیه هرگز بیانه مه شه
چه یو کسے رودِ گنگ او بل چناب شه

جگر دوزه غم او نه وزه واقعه ده
په آوازئے حُکه تن لکه سیماب شه

داخیر مگر آتش وٙه بے گُما نه
همه زره دَ مخلصانوئے کباب شه

غیبی کانی ئے سر دوه کړله دے پسَ
دَ تارونو په ژغ بیا ژوند کرباب شه

ماپارس لیدلے نه چه سنگ ئے زر که

دَ صاحب فکر مصدر دَ دے غنجاب شه
دَ ختکو اولس سنګ وه بے وقاره
هغه سنګ یے له مجلسه زری ناب شه
خان په قصد دَارم کوچ وه کړه له دهره
پسسته یے اولس د وب په اوبه آب شه
بوعلی دَ پښتانه له دوره وه بیش
په جهان یے نخښه پاتیو کتاب شه
په حیات یے له اندوه کناره ؤم
په رحلت یے هویدا دَ غم سیلاب شه
نکه هاله راوا دخوشی دروه
په هجران یے هسے بند دَعیش باب شه
که شکوه له دوره شی څه فایده نشته
اُس قضا په ارمان عُمر دَ شباب شه
ذات له ذات په سیلی ځموت کړه شی
دُنیا بحر دَتراب سرے حباب شه

اُس لمن دَ شکیب مه پریږده خاطره
که هرڅو دَ زړه په ملك صبر نایاب شه
دَ انصاف په سترګو حال دَ خلقو ګوره
تر شماره دَ ګُذشته وُو تیر حساب شه
سکندر چه شهریار دَ بحر و بر وُه
تر فلك یې لا بلند دَ در جناب شه
دَ دولت خیمه یې پریوته په زمکه
چه یې غوځ دَ چادې په تیغ تناب شه
سلیمان چه تخت یې باد وُړه له شرفه
نهایت یې تور بستر محل دَ خواب شه
ما په سترګو ډیر لیدل مالك رقاب وو
نن یې خاك دَ تور لحد مالك رقاب شه
سخن ور بلبل چه تالیده مهجوره
په قفس دَ تور وخاورو لاجواب شه

همه غم لره موجوده دا فنا ده
په خطه یې تل ژړا که خندا ده

نه نه ځای د خندا نه غلطیږه وه وی
بلکه دا همه ژړا لره پیدا ده

د امان لوری به چرته وی عالمه
دلی واړه د مرگی شور و غوغا ده

د صفی اولاد رمه دی یې لیوه شه
دم په دم یې ځکه خوری چه یې غزا ده

خوب به څرنگ په حیات کاندی بې غمه
په هر ذره چه رقم ویره د موتا ده

ما او نه لید هسې ذره په زمانه کښ
چه یې نه موت په سر ایښې عِنا ده

نه نه دا عِنا خاصه په انسان نه ده
په دا داغ ینه اخته د هر اشیا ده

زما ذره چه گواهی تلی په دروغه

په دا قول یې راکړے نن فتوا ده

چه یې وے په وسیل غوږ باسه زیرکه

چه خبر ئې پما کړه واقعه دا ده:

یعنی نن هغه امام دَ ننګیالیو

په ډیره غریب لاړ دکه ے خواده

مسافر شه هغه شیر دَ جبانو

چه زُهره ځینې اوبه دَ اورنګ شا ده

نه یې څوک ئې پرِ حاضر نه برادر وه

ساه یې قیضه له غمونو په صحرا ده

نه یې ځي دَ خپلو ولیده په سترګو

نه یې کړے چا په رنج کښ دلاسا ده

لا یې رب په حال خبر یا زه پوهیږم

چه له خپلو یې لیدلے څه جفا ده

دَ جبال غر څه یې ژاړي په زاریو

دَ سر یو باندے هی نه یې صلا ده

مرور له خلقه لاړ دے را به نشی
ستا په باب یې دُعا کړے دَ بد دہ

ته په ځ دَ زړګی ګرځے کوم ادب دے
چه تنه دَ صاحب لاندے تر غیرا دہ

وَ نے غروته یې د حال په ژبه ژاړی
ته بیغمه خوب کوے دا دِ وفا دہ

ما وَیځه بیهوده شور لرے باطله
دا قصه چه ته کوے کله صلا دہ

له حیا به تن دَ خان خوږ لے نشی
په دا خوی که هر څو زمکه بیحیا دہ

وے یې ته که خبر نه یې زه دِ ځه کړم
دا قضیه په دکن هر چرے رسوا دہ

راته بنه واے که بد رضا دِ خپله
یا که زیره دِ پیکور کښ دَ بابا دہ

په بنه ځ به یې نور ستر ګے ځلا نکړی

د دیدن طمعه بوات په اُخرا ده
ماوګوش یې لما واړه ربوده کړه
چه دغم قصه دِ بیا کړله بنیاده
هسره مه تلے مرورله زمانیو
ځو دا سخته حادثه پرته په ماده
کښېلاس د قضاوه شکاوه بے وسه
ستامشکله یے سپارلے په مولاده
ماوے وایه حقیقت له هغه ځایه
چه دا سخته حادثه پکښ برپاده
وے یے څه پښتنه کړے له هغه ملک
چه جوسه یے تشه توره له ارواده
دختلوعزت هاله چه دے روغ وُه
حیاتی یے پس له ده بادِ هواده
نظام پورپه ژړاتوے کړے مانړیے
له هودیالویے پرے کړے تمناده

دمجلس زمکه هغه مهری یئ لاړه
په ارمان یئ الوده هره گیا دهٔ
یوځل ورشه دمجلس گوته یئ گوره
چه له غمه څرنګ تویه په بنا دهٔ
خوړے مخ په وهل واړه شخوده کړ
زیړه زیړه په داغم لکه صفرا دهٔ
دبدبه دحرمت ماته شوه دتورو
دعزت زیړه خره پلے د لوا دهٔ
میرکلان یئ له اخته په ماتم نه دے
سکه په څه یئ پوشیده توره قبا دهٔ
هغه غرچه یئ له اسمه غضنفر وٗ
ترکید ریئ نن نامه بتره لا دهٔ
غشی خط د ویزارید ولینده ورکړ
لینده لا د زنی له وصله مبرا دهٔ
ډال روغن له تاوه ویلے په تنه کړه

مُتراد شرمَ توره لـه بریښنا ده
دخولې معدن چه تا لیده خاطره
په صحرایې دغربت خونه تنها ده
هغه واف چه دُرفشان وه په وګړي
ئن یې ګوټله په لحدثریه ګویا ده
چه چراغ دهُنر زمکې پوشیده کړه
که یې زه په ژړا دوب کړمه سزاده
بحرمت د محمدؐ واحده خدایه
چه پایه یې په مُرسلوکښ والا ده
په عزت دهغو پاکو لا شریکه
چه پرې تیره څه بلا په کربلا ده
په وقار دهغو خاصو کردګاره
چه یې ستا په درقبوله تل دُعاده
کار یې مه سپاره په عدل جلي جلي
حواله دقبله چار په کرم ستا ده

که هر څوی یې خطا ډیره غم یې نشته
چه خطا یې حواله ستا په عطا ده
په شفا یې د رحمت ښاد وخرم کړې
څوړ سینه یې په سل داغ مُبتلا ده
د زړه جوش به تمام نشي په ویلو
طولانی قصیده تم په دا وینا ده
نور به سترګې په مخ وا د بښادی نه کا
که پیتاد هجرې مینه په رښتیا ده

---

بیا داخه حُسن په بخره د جهان شه
چې په زیب رشک د ارم زمین زمان شه

لا پیرون پیر وضعیف وَه له خزانَ
د نوروز په یوه دم کوره جوان شه

د شپې طوَل تر ورځ لوې حمل بدل کړ
ن د ورځې پرې تیرې د شپې نقصان شه

راشه ستر کے د حیرت په ریاض وا کره
هر چمن یې نمونه د پاک جنان شه

زه چه ځیر شوم د چمن په ناویوجونو
د مُدهامتان اسرار راته عیان شه

د بهشت مثال م وَه لیده په سترګو
راته هر نهال د باغ مُدهامتان شه

لکه زُهره په سحر وَه خیژی جلوه کا
هر یو ګل په سر د شاخ هسے رخشان شه

پس چه ستوری یې له نسه تولد کره

ریاض عین په زینت لکه آسمان شه
نن په وار سره سنګار کا په ګلونو
د فلک نوبت په بنه د باغ روزان شه
انار مور د فیروزه لال یې پیدا کړل
اول کان د نیشاپور نن بدخشان شه
سپینې سره او سپین دادي په زمانیو
چه تر دادي شرمنده د زر و کان شه
چه هزار مه رخه تل پکښ جلوه کا
ګرد ور د باغ تیر تر سرطان شه
که لیدلے چا دیوه د برات نه وی
طور نن د لالازار په هغه شان شه
لکه جونه غوټۍ سازے په ګریوان کا
هر یوے د چینبې نن هغه نښان شه
صد هزار لونه رنګونه پکښ وینم
ګرخونه د رنګریز همه دامان شه

ډېر چه ځېرېږے همیشه په سرو ګلونو
یو عقیق د هوسی لب بل یے مرجان شه
تخ د دشتو هسے لاندے شنه نبات کړ
چه هر سُم د غزاله فیروزه شان شه
شوریده بلبل هغه زمان حاضر وه
په ازل چه ګل ریاض کره مهمان شه
د بلبل زړه یے په یو دیدن کهنه کړ
نور یے نیت د سفر وتاړه روان شه
واف یے کلکه لمن وه نیوه ګل زور کړ
په کشش کښ همه بڅه د ګل دامان شه
هزاره کله رضا چه ګل وه بلے
شفاعت یے چمن وه که تر د امیان شه
په احضار یے د هر ګل لاس په سینه کړ
هغه دم چه په باغ کښ تګ د خزان شه
په ارمان یے کوتے وه کښے له دامنه

په رخصت یې تر سر خوځله قربان شه
تماشه په بهار د یرکا د ګلونو
د فرقت غم یې پیدا دواړه ځان شه
اُس هغه روش جاری دے تر قیامته
په اولاد یې سنت پاتو د کلان شه
د هر کال په سر یې واړه د د ورغواړی
چمن ګل همه حاضر کا چه زمان شه
او بیشکه تل چه خصم حاضر نه وی
هغه نیسی شریعت چه پابندان شه
نه ګلزار د دواړو ها کا له بُلبُله
نه بلبل د ګل د عشقه پشیمان شه
نه دُنیا له ګذشته وو وفا و کړه؛
نه عبرت څوی ته حال د پدران شه
داغرا قصیده چا بیان نه کړه
څو په زمکه وطن ذات د افغان شه

کاتبین یې نقل ورعطارد فولید؛
دعبرت گوته په لب ورته حیران شه
کاتبین ویل دانا جواب یې بویه
له حیایې هیڅ وه نه ویکړ جنبان شه
له پاسخه یې لاسونه کړل په غوږو
په رحمت یې د شاعر عذب البیان شه
شاعران به یې جواب په کوم قوت کا
چه منشي ځنې دچرخ په شادوان شه
دانایان دِیې دامن وه باسي؛
د هجري له فیضه دُر همه زندان شه

---

غمه لرې په گُریز دروم له مانه
کنه اُس به دِ سرغوڅ شي تر زمانه؛
ستا بنیاد یې د بنو په غشي غوڅ کړ
برایه په خوب راغلې وه مستانه

تورے سترګے یے لا تورے تر کبلی وے
په چهره د ګُل تر مخ ډیره خندانه
لګیه لګه خماری په بالین راغله
بربنډے سترګے بے دمیوله غزانه
له مستی یے لاس وهل په شین شین
د پالنګ په سرم راغله غزل خوانه
وے یے دوه سترګے م بس په انتظار کړه
په راتله کاهلی وے کړے نادانه
ماوے اے د بنا یُسته جونو امیرے
تر حیات راضی په موت یم بے لتانه
په ویښو دیدن محال دے شکر شکر
چه په خوب را لره راغله ناګهانه
مُبارکه دا ګړی میمونه شپه ده
چه د غم په کورم ته شولے مهمانه
هغه لاړ به مُصفا کړم په مژګانو

تہ ملوکہ چہ پرِ راغلے تر زندانہ
د رپہ درِم ستا د حُسن جوڑہ غوښتہ
دکن کل حُنی خالی تر هندوستانہ
د زینت بهار د وِ رغرشہ تر دیرہ
وَہ کاږہ گرد ون ﺩ ورلہ خزانہ
دغہ نور د تاریکی د غم عدم کړہ
لکہ بخت عجیبہ راغلہ ناگُمانہ
لاهالہ دِ زخمی کړے پہ خاطر وَم
چہ دِ واکړ یِیر د وَروځولہ کمانہ
التماس درتہ کوَم پہ غُصہ مشہ
عاشق تل گستاخی کالہ خپل جانانہ
کہ زما د عرض دناوے ناخن سرہ کړے
د قبول پہ حِنانہ دہ تاتہ گرانہ
وے یے هرچہ دِ پکار دی ورشہ واخلہ
دُنیاوی متاع زما لہ خانُ مانہ

ما وے زه دعشق په سیندکښ ډوبیم
چه تمیز د نفع وکړمه له زیانه
نن م کوے دعشق له وار و ربوده کړه
تر وامق وتر مجنون تر آدم خانه
چه زما دعشق له حاله څوک خبر شه
دفرهاد قصه هغه ته شی افسانه
څکه دا فرقه حیاته وے په دوړ
چه خبر شوے د ختک دعشق له سانه
زر گوهر درونقره م پکار نه دی
که مملوکیږے راته زمکه تر اسمانه
دیوه بوسه طمع بها یے څه ده
په بساط کښ نور څه نه لرم بے ځانه
ځان م سل ځله دنځا که پکاروی
صادق نکا تجاوز تر خپله توانه
وے یے پښه دجرات تو له کړه مسرفه

کنه اُس به دِ دبو دخونه کړم اورا نسته
تر دا حال دِ حال بتر شه مُسر قوره
زما خوله دِ هسے بیعه کړه ارزانه
دیر و کړی به بُنکل کړے وه ترا وسه
که موندے په دا بها چارا یکانه
ماوے نه یے بهامال نه سر قبلیږی
نه مِ زړه ځی مستا د شوق له دُکانه
کار هر کور راته مُشکل متحیّر یم
چاره څه کړم اے صنم د دے بلانه
وے یے اُس به مِ په دار لکه منصور کړے
که زه نه وے پتا ډیره مهربانه
د سر کاس له بیهوده طمعِ خالی کړه
دم په خود شه بالفضول له بندیوانه
ماوګسل خُله فِدا ستا تر بانه شه
د دکن د پنجاب جونه تر مُلتانه

زړه مجنون غونډے خام نه يم په يارئ کښ
چه په دينه د اهو پايم بے ليلىٰ نه
ما عاشق د شيرين مه کڼه د لبرے
چه ادب کړم د خسرو ملک له شانه
هسے نه چه زه احمق لکه وامق يم
چه يے ترخ کړ د عذرا له خاندانه
ورقه اسا کيدړ قابوچي نه يم
چه تهمت د خلقو ييل کړله ګلشانه
نه اورنګ عربي ځان ګڼم ملوکے
چه يے وار کړم د عمر زيد له تهمانه
کله نل غونډے روباه يم په دا کار کښ
چه هيبت کړم د دمن له اين آنه
ديو ټبا د يار قصه مبهم نه ده
څرنګ وه تبن د بنهريو له غوغانه
آدم خان که د وفا په روش جوړ وه

چه لما سره خندا مسته مهتاب کا
که بنا ئست یې دَ مخ اووینې په سترګو
نیلا وُ غا بنې یه په مخکښ دَ آفتاب کا
چه یې دُر د نتے اوبرینبی په زمکه
ناهید که په عظیم سیند کښ دَ حباب کا
دَ زره پښې یې دَ تا بنې په زنځیر بند شی
هر سړے چه ګشت دَ ښکلو په جناب کا
دَ عشق جیل نه به یې خټ په رضا کیدی
که نقاب له مخه دور مخ په ګلاب کا
سفینه به دَ ماه ماته شی په سیند کښ
که په شپه له قصده دور دَ مخ نقاب کا
دَ حیرت غم به یې باد بند کا په ښس کښ
که څوک ایې مشاهد دَ صورت آب کا

چه دَ عشق په کوخه ګرځی داریې نه شی
دَ هجری غونډ به ځان مست وخراب کا

په بنه ئې چه ول دَ تورو زلفو مات کا
په هزار رغمه اخته زما اوقات کا
راشه یو دیدن بخاے دَ دِ بیت ورکړه
تاو یشتلے آشفته کوره وفات کا
چه دِ حُسن ته څوک اوګوری حیران شی
په پاکه دَ مولا یاد اسم دَ ذات کا
ستا دَ ئې په دود به یو بنا نُسته نه وی
که هو څو بُتان بنا نُست دَ سومنات کا
په آرسی که ثانی بدر هویدا شی
هر ساعت چه پُرسیده دَ ئې آیات کا
مرتضے خوند غازی په دوران بویه
چه په لاس دَ عدل مات بدن دَ لات کا

بُلبل تل دَ ګُل تعریف کا په ریاض کښ
هجری تل دَ خپل آشنا دَ ئې صفات کا

---

هغه څوک چه له زړه لرے بیخ دَ آز کا
نور به ورک دا بیهوده فکر دراز کا
همه اُور دَ بیلتانه دے چه بلیږی
که څوک خیر فهم دَ نا سے دَ زغ په راز کا
له مضمونه یے دَ کوچ خبر مونده شی

هره شپه چه په سحر جرس آواز کا
په داباد فانی منزل دَعیش به څو کړم
دَغم درا ژغ دَکړیال دم په دم باز کا
ژړا واړه دَهجران له غمه کاندِ
شور دَچنګ که دَرباب که یې بل ساز کا
چه مدار که اشعار ګوشی نوروکړی
دانایان به داګفتار په زرطراز کا

دَکوئِل دَژغ په راز هجری پوهیږی
څکه تل په دیر زحمت کښ عیش وناز کا

---

صبا شم له زلفو پټ دَمستے ماه کا
بے درنګه واړه طے دَچمن راه کا
په داشم چه مباهی تو له غنچه شی
له هوسه خوله کُشاده په واه واه کا
دَدُنیا تعبیر یې څه دے خبر نه یې
چه فاخته یې ئن دَسروِ په خرګاه کا
وائی سرخی په تن کلونه کوری
په آتش به یې دَدیرو کور تباه کا
هغه چارم په زړه اوکړه سروعذارو
لله ذیرۀ اکربه چه یې په کاه کا

هسې کار چه يې شکن دَ زلفو کانډِ
نه يې سِحر دَ ساحر نه يې سِپاه کا
بس واله زړونه به اُووينې په سترګو
که نُما دَ زلفو وَل دَ ذقن چاه کا
بيا يې زُلفې خم په خم په دالمط کړې
چه په غم يې دَ شيدا عُمر کوتاه کا
غټ يې مه کوره په لور دَ تورو سترګو
صفا بخت به دِ ترګسو لا سياه کا
خُونړې ياقوت يې اوپوښتي سرېو
چه په کومه وجه خون دَ بيګناه کا
که يې دار له خپله بده خويه نشي
ښې اوکيږ دَ نتې دُروې پناه کا
له تنو يې صبر خشکل کړم واعظه!
صد ساله توبه باطله په ګُناه کا
که يې اوويني ناصح طلب يې کوره
چه يې نن له مخه تل زما مناه کا

هجرَي تن دَ غم دَ يارهغه تنور کـړ
چه لُوګې دَ اور شمله په يوه آه کا

چه مُهره په تخته جوړه دَ جمال کا
دَ عشق نرد یې مضطرب دَ زمن خال کا
دوه اړه ستر ګې دِ واله شي کعبتین
دَ بیا زو مِثل هر کسی دو خال کا
محبت په تخته واچوی تا سو نه
سر دَ خصل پرځای زوړ ند بریځمال کا
چه بساط دَ قمار جوړ کا سِحر کره !
عاشقان همه بیدل لکه جوال کا
په بڼو یې څه مدام که ځیګر و لے،
ابروان یې اشاره په القتال کا
تورے ستر ګې یې راضی په شدت نه دی
کرشمه یې دَ شیدا اینه غربال کا
چه په چاه دَ ذقن بند رهایې نشته
چاپیره یې تورے زلفے لکه جال کا
که تابش یې دَجال ور باندِ او شی
په زمان بخاره سنګ قدر دلال کا
دَ تویے ور به یې مات شي درے دیے
که زاهد خبر دَ شو نه و په زلال کا

چه دَعشق مزل یې طے په واعظ نه شه
پسِ حد یې په عاشق څکه تیتال کا

ستاله مخ په مجلس دَهجری اوښے
همیشه دَهجرت غم سره جنجال کا

---

زړه مې تل په هغه مخ پسے فغان کا
چه ضیاء یے چراغ گل په یو زمان کا
دَځیگر په تاو مې سترگے شوے لالونه
تر سرو لالو ملغلرے دی باران کا
لطافت چه یے په خیال کښ تصور کړم
بے درنگه دَ آرزو اوبه دهان کا
له قامته یے قیامت هسته نازل شی
چه ټیکه په جبین کیږ دی په خوله پان کا
دَعاشق ږنځه شانه وے غم به نه وه
چه کاکل یے په څو رنگه پریشان کا
نازکی یے دَ تن څه سره مثال کړم
بیو قاره گل ورق مهین کتان کا
کله سیر لره ورځی چه زیور غوارې
عاشقان تاله کوی نوے سامان کا
په دوه وُچشمو مې شیرینه تر لیلی وه
خو په زړه مې خرابی لکه لیوان کا
طرفه یون په لارے کا دَځنیو کونهاے

که زه مرم صنمه څه ګونه زیان کا
دواړه شونډې یې عسل اننګی سیب دی
دَ عُشاقو زړونه تول په دغه خوان کا
تورې زلفې لکه جال پرې راخورې شی
په هر خم کښې یې بې وسه بندیوان کا
دُر فروشو کره ځائې بڅائې زړا شی
چه ګویا په بشائسته خندا زبان کا
زړه مې هسې صاف له صبره محبّت کړو
لکه خوبز په زړا توری دَ خطوران کا

**جواهر به دِ معلوله سینده یوسی**
**چه فلک یې هجری وار په غم سوهان کا**

---

دَ بهار په ګلو سیر چه مسته شا کا
نوې داغ به دَ میّن په ځیګر بیا کا
عاشقان یې همیشه لری زخمونه
ناوکی بانړه یې ګوره تل وغا کا
تورې سترګې یې عادت لری دَ ترکو
په کاته مې دَ زړه کور همه تالا کا
په هر لورې دَ زینت همسره نشته
چه دَ خیاله ځي ځر ګند کله قفا کا

ملغرے یئ په لعلو کښ مخزون دی
شهریار به هسے گنج کله پیدا کا
دَ شبنم غوټۍ په گُل دی اویزانډِ
که یئ دُر په بناگوشو کښ حُلا کا
سمبل یئ چه دَ مخ برابری کړه
صیقلی یئ په مالش څکه سزا کا
چه یئ باد دَ بدن شم په سمن وروړي
دَ چمن دلبرے خوله په دا دُعا کا
دا اسباب دَ حُسن اوږمی څخه نشته
چه یئ مخ وته مهتاب وائی خطا کا
تورے خاورے یئ دَ در زما دارو دی
دَ دید و علاج مِ کله توتیا کا

پهٔ وصال به دَ هجرى خاطر تازه شي
بيلتانه په زړه ويشتلے دے غوغا کا

---

عاشقان به هرګز پرے نه بردی جناب ستا
که هر څو خصلت دَ شیر لری کِلاب ستا
دَ ذقن په چاه دِ بند هله به خلاص شم
که را واچوی دَ مښکو یو طناب ستا
خوار عاشق ته که یئ باد بر هنه نه کا

له عارضو به څوک لرې کا نقاب ستا
ته پخپل بنائست مغروره خبر نه یې
زاهد تل غوندی په خلقو کښ جناب ستا
صلابت دَحُسن څه خور بښکاره کړه
چه لا ګوم ترما زغلي په رکاب ستا
دَدوه وُ ستر ګو کسی غواړم مونده نشي
شاید یوړه برایه دَ غم سیلاب ستا
دَ هجران ښکر دِ څکه پائمال کړم
چه دَ داد هرګز را نغي یو جواب ستا
په تشریف دَ اشنا خونه مباهي کړه
چه تحفه کا خپل نتلے دل کباب ستا
دَ زړ و بند لره یل څیل مناسب نه دے
زُلفې څکه مشاطه کا پیچ و تاب ستا
فراق ورپسے نور به بیا راشي په چشمو
که پرے او مږم اشنا دَ لښو تراب ستا

نورمین دَ یار په ښه خبره خوش شي
زه هجري تر شهد خوږ کړم عتاب ستا

زره چه یاد د هغه تیر عُمر نوبت کا
زما تن لره تجویز دَ اُور صحبت کا
گذشته عمر په زور غواړي یادنو
مضاعم یې چالیده چه بیا رجعت کا
صرفه نه کاندِ هجران زما په وژله
د قضا منت را باندِ لا مهلت کا
دَ دے شنه گردون په کشت کښ خم اوړي
چه په دم عشرت زحمت، زحمت عشرت کا
صد هزار ځایه بنا دی چرے ژړاشي
هر زمان چه آهنگ ساز دَ حرکت کا
روغه نه کاندِ هرگز له ازاده وُ
مکولیز مهر د کُل سره نسبت کا
که کښے دَ مقصد لاس ورکا په لاس کښ
هغه هم په رښتیا نه وی حرافت کا
زمانه به خپل رَوِش هرگز پرے نږدی
که څوک شکر ترے همیش یا شکایت کا
دَ ژړا سیل م جوړه کسی لا هو کړه
کله زړه دَ دهر سُور شه لا شدّت کا
هره شپه دَ دے فانی جهان که کوري
پیر کار و نه توَلّهُ دَ قباحت کا
په راحت یې فریب مه خوره باقی نه ده

په ارمان به دِ ترے تیر په لږ مدّت کا

نن فلک له هجرؔی غم کا راشه کوره
چه پیدا دَ هجری څه شکل حمایت کا

---

پخپل رائے دَ هر مهم فیصل قضا کا
نه دَ چا په صلاکار نه یے رضا کا
څوکار ونه زیر زبر کا دَ عالمو
هم یے زړه سره پیوند په حکمت بیا کا
په یو دم په یو نفس په یو لحظه کښ
ډِکر گون واړه کار ونه دَ دُنیا کا
دَ مراد په مونده خوښ کا څو کړے
هم په زړه دَ ډیرو مات ته تمنّا کا
ډیر خرم کا دَ وصال په مجلسونو
ډیر دَ وصل له خوښئ په زور جُدا کا
څه دَ کور په خوله کښ ورکانړِ بیوسه
څه دَ مور له نسه نوی هوسیدا کا
شهریار له تخته کوزوُلی په زمکه
په سرِیر بانړِ قائم دَ ملک گدا کا
بے زواله عیش هیڅ یا نه موجود نشه
څو دَ دروند په خاکی زمکه سما کا

خپله بخره هله وه ژاړه فقیره!
که دولت همیش یاری دَ اُمرا کا
نه باقی وی تل دبدب دَ امیرانو
نه به فخر په شوکت دَ ملک بادشا کا
هغه څوک چه په اسرار دَ قضا پوې شی
که عالم ته وبالا ویني خندا کا
دَ انکار ژبه خوندی کاله خبیثه
بې حاصله حکایت په ناروا کا
ختک ناست په بیجاپور مهر په لبو
بازیګر فلک دَ لوبو تماشا کا

په آوازې غوږ لری درو بلبلو
په دکن دَحال قصه هجری طوطا کا

---

هر ساعت یې خاطر نوې نوې خیال کا
بیهوده په تشه طمعه خان خوشحال کا
کله لار کا د هجران له کشمکشه!
ګهې یاد په آفرین ورد وصال کا
کله وائې ډیر دولت حشمت شوکت دې
بیا ذر کله آغازه کار دَ زوال کا
کله وائې درویشی دَ مقصود لار ده

لا یعقل دی هر چه مینه په اقبال کا
لکه تش په جهان راغے تش به دروحی
که ثوک خپل په دیرحرص دَجهان مال کا
کاه دَبنو دِلبرو شوق پرے غالب شی
دَ دیدن آرزو پیدا دَخط وخال کا
کاه یے سیر دَ گلزار گریبان نیسی
هر نفس لکه هلک سری ته سوال کا
هم په داخامو فکرونو زړه اخته دے
ځود مرگ صیاد یے لاندِ تر جال کا
هغه مرغ چه په هوا مهے په سیندوی
نهایت دواړه فنا وار دَ اجال کا
چه باور دِ یو نفس په حیات نشته
تف په پو هه دَ هغه چه طمعه کال کا
دَ گردون دوریو هسے بازیگر دے
چه په یو زمان بدل دَجهان حال کا

اے هجری هغه نادان دَجهان مشه
چه دُنیا یے فریفته په خپل جمال کا

---

دل شدهٔ همه بد ر شول سنا سیان ستا
ځکه تل په ایرو رغړی په آستان ستا
په دا حال به دِ له دره تیښت اوند کا
که همه تر تورو تیر کا جلادان ستا
که یې منع څوک په زور کا کُمان مکړه
چه دَ ذرّه مهر به نور کا عاشقان ستا
څوک دِ ځکه ژوندی نه ځیٔ له دربارهٔ
چه هر یو قوّت دَ شیر لری سګان ستا
له بنا ښته به دِ کله څوک خبر وُه
زما مینې نام نامی کړو په جهان ستا
ما سنګدل لیدلی ډیر دی په دُنیا کښ
ولے تیر دی تر همه وُ سنګران ستا
چه دِ حُسن ما څرګند که نو دِ غل شوم
چه مِ تل شړی له دره نګهبان ستا
لکه تیره شوه لیلے نوم یې باقی دے
تل به هسے وی بیا یاد زیب زمان ستا
دَ ریاض بازار به څه ګرم چه ته نه یې
ګُل هرګز په څهره نه وی دَ بوستان ستا
زه ختک دِ قسم کړم په نورو سترګو
که راښی وی په صورت دَ هندوستان ستا
کافرنه کا هومره قصد له مسلمانه

لکه او کا په عاشق باندِ هجران ستا

ترپالنګه به دِ یو حُل هجرۍ ورشی
که په زړو راضی کیږی دربانان ستا

---

چه خم په عارض زاء ولام وفاء کا
پرے محبوس دخسته زاؤ وراء وهاء کا
نون ومیم وراء تغیر کا له رونقه
له نقابه چه پیدا راء سره خاء کا
عین وسین ولام یے هیڅ شی په نظر کښ
هر سړے چه یے خوند نوش دلام وباء کا
صاد وباء وواؤ فرار او کاله زړونو
چه نُما دَ نون وهاء په میان کښ تاء کا
سین وتاء وراء وکاف یے فراقان دی
له غارته یے مُلک غین وواؤ وثاء کا
عین وشین وقاف یے هسے کړم له غیرو
لکه کاتب چه بے نقط الف وطاء کا
زاء ولام وفاء چه خم کا په رُخسارو
په کاغذ کویا نګار کا فونه ظاء کا
میم وخاء تدرِم خیر مه کوره خټکه!
تا به بیل له هاء وشینه لکه راء کا

چه م نور دمیم وخاء چاته مىلا شه
هاء د ماه له سلکه غوڅه باقی ماء کا

زه هجری په یې له جوره ژړا نه کړم
که په خوند لکه لب خاء و واو ویا کا

---

باد دِ یاد په هغه یار زما سلام کا
چه له یاره مخامخ مجلس دَ کام کا
په یوه لاس تورې څپنې دیار نیسی
پیوسته په هغه بل غزا دَ جام کا
صد هزار زړونه یې بند شی په خونو
یار چه زلفې په عارضو باندِ دام کا
په هر زړه چه بنکلو کوز دَ محبت شی
سر یې غوڅ په تیغ دَجور دَ آرام کا
هیڅ باور یې په خرما د وصال نشته
او رهمه دے لکه وی هجر بدنام کا
دَ وصال روښنه ورځ ډیره خوږه وی
خو تلخی یې دَ هجران په سرې شام کا

هجری کله شعر کوی یا یې طلب وه
له غمونو دَ زړه سود په دا کلام کا

په کوهرو عاشقان دکے کیسے کا
چه آغازے مسته شاه خوبرے قیصے کا
په هر زړه کښ یے دَ عشق لمبه بلیږی
لایے سترگے دَ ناتار لرگی پسے کا
هسے نه چه یے په روه دَ حُسن کوک دے
دَ پنجاب خلق یے لا قیصے بسے کا
بل مطلب یے تل په تاؤ دَ زلفو نشته
دَ زړو بند یے په خاطر پخته رسے کا
څوک دَ عشق په نرد بازی گټلے نشی
که طلب شی دَ دوشش بسکاره دُوسے کا
دَ عشق لار ډیره مشکله ده بیشکه
په دا لار له ډیرو یُون کسے کسے کا

هجری ته چه بوسه لیه غواړے له یاره
بنا نُسته اشنائی کله بے پیسے کا

په رنځو چه آلوده جوره آهو کا
بے وقاره آهو دواړه دَ آهو کا
دَ مړوند زینت یے کله زیور غواړی
چه مدد یے کاریگر دَ سرو باهو کا
صبر و هوش یے کوم گناه دَ زلفو اوکه

چه یې موٓمي په هر زړه کوریې جا هو کا
هرګز یاد هغه ساعت دَ وصال مه شه
حرارت یې دَ ارمان خوٓلې راهو کا
خوٓمي دَ وصال لاړه غم یې نه ځي
تل دَ زړه په سر ولاړ پسې هاهو کا
دَ فراق اوبنکو ړم زور اوکه په سترګو
چرې نه چه یې سیلاب کسي لاهو کا

دَ هجرؔي له آهَ دار اوکړه رقیبه!
تل دَ شپې په لمن اوژاړي یاهو کا

---

چه زړي اودنې په سر قمیص سالو کا
په هر زړه چه عقل موٓمي کوریې لوٓ کا
دَ زلفینو شان یې هسې شه له باده
نکه بوٓیې په ډیر مبتلو کشمالو کا
لطافت یې دَ نامه کوره چه یاد شي
تر شکرو لا شیرین هغه تالو کا
په عارض یې دَ خال زیب تر هغه ډیر کړ
څوجلوه په ګل دَ نار بورا کالو کا
کوم لذت به یې سیالي کا له شفتو
چه خولې یې بیهوده قند و آلو کا

سحر کړو اوربل یې کوږی زمانیو
په خزان شګوفه وا دَ شفتالو کا

دَ عشق لار به هیڅ پاخه تر سهله نه وې
مګر خام یې تصور کوردَ خالو کا

دَ جهان په باغ چه ګُل فلک یې مروړی
په مکان یې تربیت دَ سنبالو کا

زه هجری په داهُنر غمونو زوړ کړم
دَ وطن عیش به بهرام و میرمالو کا

---

که م کسی دلبر ځاے دَ کفِ پائے کا
تر هرچا به لوړ زما دَ عزت ځاے کا

زه دَ یار دَ دَرْ دَ خاورو آزومن یم
نور عالم همه آرزو ظِل دَ هُماے کا

که یې یار همیش په اُور دَ هجر سیزی
عاشق نه دے که ظاهر غیرو ته هاے کا

زه دَ وصل له دولته پناه غوارم
چه آغازه دَ هجران خبره ناے کا

دَ وصال زوال به ماله قصده هیر کړ
دا خبره دَ کوچ بله چه یې دراے کا

هغه تیر عمر هرګز دَ زړه یاد مشه

په ژړاړِم اوچه زمکه سترگے لاړے کا
هغه دم چه زهٔ له یار سره خلوت وم
بادکه اوکا دلیری عمر به باړے کا
رنډې وبوبه ډیرحاصل کانډِ گلونه
قصد ریاض لره په سیر دِله باړے کا
دَ هجران داغونه یوسی خپل وطن ته
هر بشر چه هویدا په دا سراړے کا
روغ عالم دمال و ملک خبرے کاندی
دَ دلبر حکایت تل دَ عاشق داړے کا

یار په خیر کوره هجرَی همیشه وینی
چه په خلقو یے گردون حادثه راړے کا

هغه څوک چه دَ فانی دُنیا آسرے کا
نهایت یئے مرګ هغه آسرے خورے کا
په هیڅ نځ دَ نجات لورے مونده نشی
چه سواره دَ اجل تیرے ترے پیرے کا
قضا زر پکښ تو ده کا تورے خاورے
هغه خولے چه زمانه شکر خورے کا
پرورش په نعمت څه لره دَ ځان کړی
چه آخر یئے چیچی نوش لکه ترے کا
څه بُنیاد دَ و دانځه ری دی په دا زمکه
چه نابود یئے شین سپهر له ایرے کا
ماچه اولید دَ دُنیا نادان وګړی
دَ اوبو په نځ حباب غونده دیرے کا
دَ قرار ولایت خپل دَ هیچا نشته
څو دا شنه څرخه په سر بانډ پیرے کا
هر مکان چه بنا لُسته په ودانه شه
په شتاب یئے سپین وابنه لکه میرے کا
دَ وصال مزے محکم را ښکاره نه شه
ځکه زړ یئے دَ هجران لاسونه پرے کا
خُرّمی په جهان نشته که پیدا شی
هم هغه زمان یئے مرګ خاورے ایرے کا
نغاره په دروغ ژغ کا چه بنادی ده

غم یې ځکه اوس عالم ته مسخره کا

په هجري يې سینه یخ پخپل مراد کړه
سوی یې څه که اوس سپهر ته سیرے کا

رب دِ ورک آتشین ژغ دَ دے سُرنا کا
دم په دم دَ مرده غم را ته احیا کا
په هر لور چه یې له قربه مسافر شوم
را ته اور هغه مکان په ژړا بیا کا
په کړکیږ کښ یې له قربه گریزان شوم
ما وے کُند دے م ترے بیل چرخ دَ سما کا
بیحا پور لره چه راغلم که م غوږ کړ
دلے هم هغه فغان دے چه یې دا کا
زه لښه دَ هجر مړه کړمه په اوښکو
والیٔ بیا را ته پوکے سرِیٔ بالا کا
ما په ډیره ناله نو دَ صورت اوچ کړ
لا م هم چه باړه اوچ وینی غوغا کا
یا خُدا ده له یارانو پسے ژاړی
لا زما په حال خبره شوه ژړا کا
چه یې غوږ زه په مضمون دَ آوازاوکړ
وارہ یو په یو بیان قضیه زما کا

ماچه راز دَحقیقت له نا یه غوږ کړ
څوک به څه رنګ له یاری طمعه وفا کا
که یو دم وصل دَیار چا ته موجود شی
هغه دم یې بیا ګردون سره جُدا کا

هجری ته بانه اوچ مه لره چه خوږ یې
ستا په روغ وګړی څه دی که خندا کا

---

په زیور چه ډیره مینه هر دلبر کا
دَ ښائست سره کومک زر و ګوهر کا
بل مطلب یې هرګز نه وینم په سترګو
مګر داچه ملک دَ زړه زیر و زبر کا
تقصیر کله په لوټ کا حُسن دَ ښکلیو
چه زیور بیهوده ځنې سره لښکر کا
چه دَ ځنې سپاه یې تاخت کا په هر لوری
کبود خال په سر روان لکه رهبر کا
دَ قضا کاتب یې مدکوز کا دَ ورو ځو
دَ حیرت لاس ربوده ځنې مستر کا
چه په تاخت دَ زړه دَ ښهر صرفه کاندی
په زرګر دوباره ساز هغه زیور کا
دَ جنګیانو توره نه وی بې صیقله

سور بُلاق یې تل صفا ځکه زرګر کا
دَ وطن عیش و هوا به دِ هیر نشي
بیجاپور که راته ډک همه په زر کا

یو هجرې دَ هجر غم ترلمن اونسیو
نور همه دَ یار په وصل تل اختر کا

---

فلک تیغ دَ کین او بنکلي دې هیجا کا
په نوبت له تنه بیل سر د هر چا کا
که هر څو دَ خیال پګړه په دور پاڅي
زر په زړې په دا زمکه خوره بیا کا
صد هزار ماهي یې پرې ایښي له بیخه
لا به څو کورونه خاورې دَ بیدیا کا
څوک به څه شکله اُمید دَ عیش کاندي
چه په دور واړه غم لره پیدا کا
هغه یو نفس دیدن دَ یار بنادي وي
هم یې بیا سره ګیستي په زور جُدا کا
په یو حال یې قرار نه پرېږدي په زمکه
تر هغه چه یې راهي بیل له دُنیا کا
دا ګردون لکه صرصر سوړې وزر شه
هر ساعت یې کاه په تخ ګله په شا کا

ته بازی دَ بازیگر سپهر گوره!
چه هر کار په ضد دَ عقل هویدا کا
هر نفس به صد هزار عجائب وینی
که په کار یے څوک دَ عقل سترگے واکا
په دا حال ته ناپوهی دَ سړی گوره
چه به چرته بیهوده اوږده رجا کا

فلک کږ دَ هر غنیم یار مستغنی وی
دَ هجرَی په خام اُمید عقل خندا کا

---

چه یے زړه دَ ډیر عالم قتل پسند کا
څرنګه هله دَ چوټی په سر پیوند کا
هزار زړونه قضا ور ولی پخپله
هر نفس چه خال دا نه زلفے کمند کا
بیا په نته لاس وهی آئینه گوری
بل مطلب یے په زړونه دَ قتل سند کا
جلاد تل چه نیت کوی دَ چا دَ وژلو
تُوره او کابزی اول په لاس یے بند کا
سکوریے څکه په دندو دَ نتے کیښنو
چه ناظر دَ مخ کباب لکه سپند کا
غم یے سم قدونه نون کا دَ عالمو

چه روانه شی په ناز الف بـلند کا
تل دَ زړونو ملک لوټی تن خبر نه شی
په شتاب هسې هُنر دَ یار سمند کا
دَ وصال ما نئ یې هسکه وربه نشي
که عاشق په ډیر جدل سینحر پرند کا
په خوږه ژبه ئې بیا کاندی خبرې
نرخ په هرچرې خنک شکر و قند کا
له سرو شونډو یې لذت خبره واخلی
څکه پس په لطافت دَ قند و خوند کا

هجری ته چه نمر ته غټ کیسلي نه شې
څیر به یار کورې په څوکه څخ څرګند کا

---

ناز لائق دَ سویو نه څکه نیاز کا
نیاز نه لری دلبرې څکه ناز کا
زه په مهر دَ یار څکه باور نکړم
چه کله زما کوی غوږ په غماز کا
نور قرار له هغه دله رمیده شی
چه په سرې دَ بنه څخ مینه طراز کا
نمر کلونه تولد کاندی په شپه کښې
چه خمونه په عارض دَ زلفو ساز کا

هزار زړونه يې طُرّه په منګل واخلي
په عُذارچه يې پرواز دَحُسن باز کا
له خولو يې بوېٔ همه ګُل و کافورشي
چه په وصل دَ تن خاص هغه پيشواز کا

## دَسرود ندا زحمت کښه هجري ته
## هغه دم چه ښې دلبرې سره راز کا

چه آغاز دَ زړونو بند لره تدبير کا
تورې زلفې هله څېل غونډې ځنځير کا
څو حمونه يې موجود شي په ځنځيرکښ
هومره زړونه په هغه څېل کښ اسير کا
په کوڅه يې دعشق مه ورځه مالداو!
په نګاه به دِ مجنون غونډې فقير کا
څو شيران زلمي زخمي کا په ساعت کښ
چه دَوروځو په ليندا ه دَ بڼو تير کا
په تاراج يې حيله نه کا تورې وروځې
خال په کوم جُرم ترې بر لکه امير کا
رنګ و بُوېٔ به يې ثاني دَبدن نه شي
که کافور څوک په ګلابو کښ خمير کا
په کالونو به يې شمار ترسره نشي

که حساب یې دَ بناګوښت څوک په ضمیر کا
دَ خولې په ښکار یې خلق په اوړ کیدي
چه اوربل لکه خسرو تیکه وزیر کا
بناګوښته جونه غره دَ مخ په زیب دي
په کثرت دَ مال که فخر عالمګیر کا

**هجري سخت هغه سړے وي په دُنیا کښ**
**چه نامي صنمي خاورو ته مصیر کا**

---

له نقابه چه یې مخ ضیاء شروع کا
ته به وایې له مشرقه نمر طلوع کا
په بنه مخ یې شان دَ خال هسے کیدشي
ګویا مهر ته هندو سجده رُکوع کا
دَ یار مخ که مهر نه دے راته وایه
زړه مې ولې نیلوفر غوندې رجوع کا
تورے سترګے یې چه سحر کا حیران یم
چه په یو نظر دَ شتو شیر جزوع کا
په دربار دَ ښکلو کبر پاتے نه شي
که بادشاه یې په در ورشي خضوع کا
زه له یاره په دا خوی شُکر ګذار یم
چه رقیب غمازي کا همه مرفوع کا

مدت پو یہ چہ شاعر هسے پیدا شی
چہ ویل هجرؔی ختک غونډِ مطبوع کا

پہ عارض کورم زیبا مشکی نُقط ستا
کہ چا پیر کورم تر مخ عنبری خط ستا
هغہ دم چہ تا دَ ناز چارہ پہ کف کړه
بندہ سر کیښو اشنا دَعشق نہ قطستا
ما چہ پښہ دَ محبت پہ کوڅہ کیښوه
لا هاله مِ کہ قبول وارہ شطط ستا
هر عاشق دَ یار پہ مینہ تازہ کیږی
پہ ختک تر قند و ښه لږی سخطستا
دَ مخ زیب دِ کاه رُبا زړو نہ علَف دی
بندَوی یې لکہ غلہ زلفی قطط ستا
نام ونګ دِ نخستین همہ ترشا کا
چہ لری هغہ عاشق دَ کوئے نمط ستا

هغہ ورځ چہ غوغا پښہ دَ قیامت شی
دَ هجرؔی لہ ژبے مشہ نوم غلط ستا

# ب

چاچه اولیدو په یار باندې زما حُب
ورته سهل شه دَ هیراو دَ رانجا حُب
دَ مجنون عشق مشهور په دهر نه وه
که تر عشق یې زیاتی نه وې دَ لیلیٰ حُب
دَوآمق دَعشق به هومره غوغا نه وه
دیرنا می کړو په جهان کښې دَعذرا حُب
هغه مه شماره عاشق بلکه کاذب دے
چه یې سور شي دَ دلبرې دَ جفا حُب
په دا دور زما ستا دَعشق نوبت دے
اوس قضا شو دَ اسد او د اسما حُب
دا به هم آخر فلک کاندہ ماضی کا
لکه تیر شه ورقه هم دَ ګل شا حُب
څو دَ یار زړه یې مایل دے وَجفا ته
دَ هجری شه همیش هومره په وفا حُب

چه دائم دِ وی له زړه سحر مصحوب
هم هغه دے په دُنیا کښ ستا مطلوب
څو یې حُسن گیرنده د زړونو وی
په زور نه شی څوک هرګز دَ چا محبُوب
دیر جدل عاشق واصل په مطلب نه کا
څو یې زړه دَ عشق په کار نه شی مرغوب
دَ وصال سحر یې کله په خُرّمی کا
که دَ هجر شپه میَن کاندی مکروب
په هجران کښ یې نظر دَ سترګو کم کړ
بیا بینا شه دَ یوسف په غم یعقوب
دَ عشق جیش یې هسے زور را باندے اوکړ
چه یې عقل له دماغه کړو مسلوب

هغه دم پما هجری عید اکبر دے
چه نازل شی په دکن دیار مکتوب

---

کباب دل به مِ تازه نه کا شراب
اوچه ونه خو مرے کړه په تاب
تیبسته مکړه دَ ګردون له نوائبه
دام دِ نه شلوی مرغی په اضطراب
هر بشر دَ مراتب په قدر کار کا

نیوے نشی دَ باشین صید عُقاب
که عُقاب حمله دَچتی په نیوه کا
په منګلو به یۓ وری شی تراب
دَ میٔن ژوندون مشکل دے بے صنمه
دَ ماهی موت دے خُشکی حیات دریاب
کواکب په ژړا شمیرم نه تیریږی
طولانی ده دَ فرُقت شپه ترحساب
صفادل دِ جګړه نه کا له بد ذاتو
بحر نه شی که غوغا کا ندی سیلاب
دَ چیلے لُومه به بند دَ صادق نشی
نهنګ کله پرے حصار کا دَ ګرداب
که دَ قدر سرلرے سدا دپیشه کړه
دَ راستی په مجلس کوز کوری قلاب
صادقان به ولے دار کا له کذّابو
نهایت دِ کار مطعون ګنه کذّاب

هجرّی ستا په ژړا دورنه خمیږی
دل سوزی په مږونو کله کا قصاب

---

پیرم اولیده ملوکے دَ گلزار زیب
ولے نه لری هرګز ستا دَ رخسار زیب
ماچه حُسن ستا دَ مخ په ستر ګو اولیده
نور به نه ګورم هرګز دَ ګل بهار زیب
ستا دَ مخ حُسن محتاج دَ زیور نه دے
نور دِ مخ سره مدد کا دَ سنګار زیب
سپین بدن که دِ نقره بولم روا دے
چه یے مات په سفیدی کړو دچوتار زیب
لکه ستا په عارض بانې خال جلوه کا
هسے نه کا تور بورا په ګل دَ نار زیب
دا زینت چه ستا غُنچه کا دَ لعلونو
لاله نه کا هسے شان په لاله زار زیب
چه بیسرته دِ حیران هاله به څه کا
که دِ اُوینی عالم د چندن هار زیب
هیڅ شاعر به یے تمام په قرنونه کا
که دِ شب و روز بیان کا دَ ګفتار زیب
په خرام دِ دری زرکه شرمنده کره
روشن څکه شو تر نمر ستا دَ رفتار زیب

زه هجری یے دَ بنا ئست خبرے څو کړم
چه یے ختم په بنه مخ شه دَ دوار زیب

# ت

چه یې اولیدو دلبره ستا بنائست
شکست اوخوړ دَ قمر والا بنائست
لکه ستا حُسن عالم زیر و زبر کړه
وران به نه کا هسې ملک دَ چا بنائست
ډیر دلبر دی په جهان کښې ما لیدلی
په دید نه کړو ستا په مثل ما بنائست
چه یې سیال دَ حُسن پرې نه بنود په دور
صد رحمت شه ستا دَ تخم په دا بنائست
خو بازار دَ خلقت ګرم په جهان شه
دائم نه اوسی یو ځائې وفا بنائست

هجرؔی یار که وفا نه لری معذور دے
هرګز نه وی له جفا تنها بنائست

ما چه اولیدو په سترګو دا والا بُت
شاید نه به وی دا هسې په دُنیا بُت
خپل بُتان به آذرؔ وار په اُور کیښوُل
په ژوندون که یې لیدلے وے زما بُت
دا چه ئن یې زما زړه یو پړو له تنه
هسې نه ؤه پخوا هم دَ هیڅ شیدا بُت
زما بُت بنده دَ حق زه پرے عاشق یم
هرګز نه ویم کافره ستا بلا بُت
رسیدل مولاته هومره مشکل نه دی
که حائل په میان کښ نه وے دَ هوا بُت
ولایت به دَ مطلب په حیات خپل کړے
که نابود کړے په کوشش دَ عمل دا بُت

هغه رب زما خالق چه لا شریک دے
هجریؔ مات لکه خلیلؑ کړه ناروا بُت

---

راشه راشه یو ځل اوده ځه رات
څو خبرے به دَراز و ایمه تا ت
هغه راز چه مِ په زړه کښ پوشیده دے
بے لتا به یې اونه وایم هیهات
چه دائم یې رنګوے دَ یاد په وینو

ستا کندړي به دهر هم کا آخر ماتَ
ته چه هسے زړونه تل په غشوؤے
هیڅ عبرت نکړے دَ سویوله آفاتَ
زه به دا موت اول غواړمه له یاره
چه آگاه یےُ هرګز نشم له وفاتَ
چه یےُ حُسن ته څوک ګوري هسے وائیُ
چه دا مخ بیشکه کوز له سماواتَ

هجریؔ اصل یےُ انسان که بناپیړی ده
په یقین یےُ څوک خبر نه شه له ذاتَ

---

مخ یےُ هومره دَکتوُن کا نظر تت
چه دَ هیڅا نظر نه کا هسے نمر تت
څوک یےُ غبَ ګګه دیدن ته کتے نشی
چه په دم یےُ کا نظر نور دَ دلبر تت
زه یےُ مخ په قمر څه شکل نسبت کړم
نظر نه کا دَ هیڅا مخ دَ قمر تت
دَ بنا ئست پایه یےُ دومره ده بلنده
چه یےُ وینم ترخولے پورے ګوهر تت
لطافت م دَ رُخسار مشاهده کړو
چه زینت یےُ که یاقوت همه احمر تت

دَ یار حُسن به هِم هسے فلک تیر کا
لکه وار کا دَ خزان دَ گُل بشر تت

هر ساعت چه په دیدن دَ ریاض ورشی
دَ مخ زیب یے کا هجرؔی گلونه ترنت

---

دَ مخ زیب یے نِقاب لرے کړو دلبرت
بیهوده زبونی پیری خپل نظرت
دا دعوے به ستا هاله خلق باور کا
که په خیرو سترګو اوګوری ونمرت
بنا ئسته ګله پیره په ریاض اوکړه
صد هزار ذِ منتظر دی مخ انورت
تورو زلفو یے عزت دَ مشکو مات کړو
نه یے قدر هیڅ پرے ایښے دے عنبرت
چه له سترګو یے دائم برابری کړه
بنه چه رنځ دَ زیړی ورغے عبهرت
په زیور آرائش کا چه زیبا نه وی
ته ګلرنګه څه محتاجه یے زیورت

لریے حُسن په عارض دَ یار مثال دے
ځکه ډیر ګوری هجرؔی ګُلِ احمر ت!

که یې اولبړی په مخ دَ نسیم کټ
دَ لاله غوندې په توې شی رت پت
چه دَ وزن تاب یې نه لری ملوکه
نور دِ سنګړه ترې هرګز په چوو ختِ
په شمه یې دَ غُبار نښه اونه کا
تل دَ ګُل په کسی پښې کانږِ ثابتِ
مرمت دلو مو کا زړونه په نیسی
بیا یې ځکه دَ ټتر کُنډې ادبِ
سم کتل دَ شاه په لوری سهل نه دی
دَ سری په لوردَ مخ کا سترګې تتِ
که مشکی دانې یې نه وی په عُذارو
دَ هر زړه مرغی به کله وړ الوتِ
هغه دم مېن په اُور دَ ستم اوسو
چه دلبر یې دَ غماز خبرې نغوتِ
محبت دَ مېن ګوره دلبری کا
زر کلی یې په در پروت وینې یې چتِ
په سریر دَ حُسن ناسته خوف یې نشی
خلقې یې خو په جور کړې ستر بتِ
وَختک ته یې په خوب تجلّی اوکړه
له آرزو یې په مری لاړې نبتِ

# ث

عجب شور په زمکه بشکلو کړ احداث
له جورونو یې څوک نه کا الغیاث
ماچه اولیده بازار دَ مهو شانو
هغه ځای مې که نازل دَ کورا ثاث
په جهان اګرچه ډیرې دي ګلرنګې
نن دَ حُسن ستا په سرو ینم رعاث
مګر چشمو دې په لُوټ دَ زړو صرفه کړه
چه کومک لره دې پور کړ لو حثاث
دَ یار غم مې بیا په زړه غلبه اوکړه
مطرب بولی چه آغاز کاندی عثاث
زما عشق یه ډیر وکړی لیونی کا
که یې پس لما قسمت کا په میراث
کیفیت دَ عشق عُشاقو ته روښن دی
په احوال دَ کینت دانا کښه حرّاث
زه په هله حال دَ هجر برهنه کړم

پہ قیامت چہ خلق او کا انبعاث

زہ هجری پہ دِ لہ درہ تیښت او نکړم
کہ مې وژنی هره ورځ څله ثلاث

---

چہ مې یار پہ ملک دَ حُسن شو مبعوث
هغه ورځ بیے عشق پما او کړو حدوث
دا جنون چہ نن پہ بخره دَ ختک شه
له مجنون پہ دور پاتو ؤه موروث
دَ اتیان خلقت دَ رب زه پرے مئین یم
صد لعنت شه پہ دوستانو دَ یغوث
دَ غلام پہ نام مې یو څله طلب کړه
چہ له دوکه شی هلاک رقیب دیوث
دَ عاشق پہ زړه کښ عشق هسے شورش کا
لکه ننوځی دَ چا پہ ختب برغوث

چہ دَ یار له عشقه منع دَ هجری کا
هغه کس کښه دَ درست دهر هلیوث

---

زه که اوکړم ستا له جوره شا غیاث
کله آرِوی په ملک څوک زما غیاث
په احوال مِ التفات وَکړے نه کا
ستا له عشقه تل کوم ژړا غیاث
ما چه خوئ دَ ښائسته وُ تجربه کړو
هرگز نه کاندی له چا وفا غیاث
هر عاشق چه ژړا اوکړه له دلبرو
کله غوږ که دَ حیران وچا غیاث
په رآنجا به کار دَ عشق وے مشکل وُه
که نغوتے دَ ده غریب هیرا غیاث
په ژړا ژړا مجنون په دشتو اومړ
وے گوش نه که دَ ده لیلےٰ غیاث
که له جوره دَ زړه زارم سُودِ مِ څه دے
چه څوک نه اروی زما اشنا غیاث
چه دِ یاره دَ جور داد په دور نشته
نور به نکړم په عالم لتا غیاث

هجرَی غاوُ کله څوک اوری دَ بُتانو
چه به اروی اوس وکړے ستا غیاث

# ج

چه په ملک دَ حُسن ستا په سر دے تاج
مناسب دی که له بنکلو آخلی باج
دَ خوبئ مداح دِ زه مهر په بل کړے
ستا په دورِم نن اولیه دا رواج
نه دَ چا په زړه جوړه مینے وفا کا
نه په یو رنګه وطن کا دوه مهراج
هغه یار چه په دیدن یئے مُبتهج وَم
په ارسال یئے دَ جواب یم نن محتاج
جُدائی په رضا نه په زور یئے بوتم
دَ قضا قوت چوګان وَه زه مُغلاج
دَ مُراد دامن بلند رسدِ م نشی
مکر هسکِ م کا دَ مهر په معراج
هغه مه کنه عاشق بل منافق دے
چه جُدا له یاره کاندی ابتهاج
دَ نفاق سر دَ همّت په توُره غوځ کړه

هله دروهمه دَ عُشاقو په منهاج

په ساتل یئے فهم بویه چه مات نه شی
دَ هجرِی خاطر نازک دے تر زُجاج

---

تا چه مات کړو سر دَ زلفو په رُخسار کښے
عشق یئے او کړو په خاطر زما بِهار کښے
ستا په قد یئے چا خوبی ده نسبت کړے
اوچ ولاړ لرګے دَ سروِ ناهموار کښے
ما اظهار دَ مینے که زورل یئے اوکړل
له هوسه دِ په سر کینښو دستار کښے
غم به دیر هسے کا بزه لکه لینده کا
چه دِ جوړ که په سینه دَ دُروهار کښے
دَ ابرو په کښے دِ بخت دَ جهان کوږ کړو
لا به څه شی که له کبره کړے ابصار کښے
خاصیت یئے دَ ګردون په دودمالش کا
که هر څو دِ په زیب نه لرے رفتار کښے

لکه ستا صورت بے وته رب پیدا کړو
دَ هجرِی هم هرګز نه لری اشعار کښے

---

# ځ

مُکدّر زړونه خوځ کا دَ اشنا ورځ
هومره نه کا هرګز مهر انجلا ورځ

ما په شپه کښ دَ هجران عمر آخر کړو
لا به کله دَ وصال وینم صفا ورځ

لکه ما ته مخانخ شوه له دورانه
پیښه مه شه په هیچا هسې بلا ورځ

فلک ډیر کو ښمال دَ ما په مدت راکړ
ګوندې بیا په مراد رائیشی زما ورځ

هغه دم چه دِ راحت وه پاتو نه شو
تل به کله پائنده وی دَ عنا ورځ

نن زما او ستا دَ عشق خبرې کیږی
پرون لاړه دَ مجنوںؔ او دَ لیلےٰ ورځ

دَ هجریؔ خاطر خویش او سه په غم کښ!
نهایت به ځی ظاهر کا دَ خندا ورځ

# ح

په دُنیا به هسې نه وی څوک سبک روح
څو لری تل شګفته یار دَ ختک روح
یو نظر یې هسې زړه له تنه یوسی
لکه راشی له چپا تیر دَ توپک روح
عاشق زړه هسې دَ یار په زُلفو باندې کړو
لکه باندې کړو ګدایانو په بنانک روح
نه عاشق دَ یار له عشقه صبر کاندی
نه شکیب له شیرینئ کا دَ هلک روح
زړه مې هسې دَ یار هجر په اُور سیزی
څو ورتیږی په دوزخ دَ بد ملک روح
تش صورت دَ ختک شته په بیجا پور کښې
تل یې سیر پور ے کاندی ترا اټک روح

هجری هسې خام عاشق نه دے دلبره
چه دربان دِ یې هیبت کا په کوتک روح

نن ظاهر که له نقابه خاکی ماه یُوح
سیال یې نه وَه دَ خولې دَ فلک ماه یوح
دَ مهتاب انوار به څه وی هغه نُور ته
چه یې مخ که بے وقاره تر کیاه یُوح
دَ ماه مخ ته په څیرڅه شکله ته کورے
چه کتے نشی هرگز په غټ ننګاه یوح
مخ دَ ورځ یې هله شپه په زلفو پټ کا
چه په غم کا هغه دم دَ مغرب چاه یوح
دَ شپے زلفے بریدَه وَرځ هویدا کا
چه خنجر له شرقه اوکا بزی په ګاه یوح
په خاکی زمکه یې سیم وزر نثار کړه
چه روانه یې له ماهه که سیاه یوح

هجرَی تور عنبر دماه په مهر کوره
هرګز نه لری عنبر هسے سیاه یوح

وَخالق نه چه څوک کا سحر الحاح
زر پیدا کا دَ قبول اثر الحاح
پتا هیچرے تا تیر دَ فریاد نه شی
عاشقان دِ کا همیش په در الحاح
دَ بینا لښت کبر که ؤوځی ستاله سره
هله ؤاورے نه دَ چا مکر الحاح
نن ژړا دَ خلقو اوره چه وار تیر شی
او به نه کا در ته هیڅ بشر الحاح
ستا په زړه به دَ الطاف اثر او نشی
که له ګوره در ته کا اکبر الحاح
فغان سل ځله فغان ستاله ستمه
چه هیڅ نه لری لستا شمر الحاح

یو بوسه دِ په هزار منته غواړی
کله اروی دَ هجری احقر الحاح

---

چه دَ شپے په لمن څوک اوکا الحاح
مطلبونه یئے رب واړه کا انجاح
دَ تقویٰ لمن مضبوطه کړه په لاسو
که پکار دِ له دوزخه دے فلاح
تر دا لوے ګناه بل مه ګڼه په دَوَړ

چه ملال کړی په ناحق دَ چا ارواح
دا وینا باطله مه شمیره جاهله!
په دا ووے دی متفق اهلِ صلاح
چه گناه له چا صادر شی بهتری ده
که مستور یئے کړو دَ عفوِ په اجناح
ستا په مخکښ خونی یم پورے به نشے
مگر نیک عمل بیړی کړه هم ملاح
له هغو به څه اُمید دَ خیریت وی
چه بیغمه حرام خوری لکه مباح
بدۀ وینه به دَ تن ښهر خراب کا
که یئے رگ دَ خروج وانه کا جرّاح
دَ ابلیس خبیث حرص در ته تعین دے
پټ سپاهی کړه څان دَ خیرۀ په صلاح

اے هجری که وسیله دَ جنت غواړے
دَ پرهیز ناوے زوجه کړه په نکاح

# خ

په دربار دِ يې هغه کړي گستاخ
چه له غيرو يې خالي وي دَ زړه کاخ

کړه څانګه ماليار غوڅه په لاړهٔ کا
پرورش کا هميشه دَ سيده ښاخ

ته قابل دَ يار ئې نه يې لافې مکړه
کهَ وي په ملک ذره خيري دماخ

دَ واعظ وعظ باران اثر پرے نه کا
دَ جاهل دَ زړه پيتے دے همه لاخ

اوريده ليدهٔ هغه ته نصيحت دے
چه يې لار دَ زړه په ملک ده د سماخ

دَ معنو مغز دانا ته برهنه وي
نه چه سِر پوشيده مومي هر طباخ

ته په څه شکله راز مومے دَ خبرو
بے زبانه تن ولاړ ے لکه تاخ

که هرچند سرے کودن دَ زمانے وی
دَ خپل عقل مدد تربل گسنی فراخ
څو مرهم راحځ دَ وصل زه په نه وم
زړهٔ م سر له سره هجر کړو سوراخ

## بل ثانی دَجواب نه وینی په دور
## هجری ځکه په خپل شعر کا پتاخ

څوک چه او وینی دلبره ستا انور مخ
ورته هیڅ شی ستا په سر کو دَ قمر مخ
ستا دَ مخ نمر به یے مات په یو نفس کا
دَ قمر بنا ئست که هم واخلی دَ نمر مخ
تا چه سیر دَ باغ کا ؤه مخ دِ یے اولید
له حجابه همه زړه شه دَ گل مر مخ
هم هغه ورځ دِ خولجه دَ زینت مات کړو
ځکه سپین شو دَ یزدی گلاب احمر مخ
چه یے تل برابری کړه ستا له سترگو
دائم زیړ لکه غماز وی دَ عبهر مخ
څو دَ مخ بریښنا دِ غوځ دَ سری زړه کا
هو مره کله په چا کار کا دَ خنجر مخ
ستا جناب زما وطن پرے معتکف یم

رابنکاره مه شه هرګز دَ بل بشر مخ
دَ وصال ورځ دِ هیش پما جنت وی
خو هجران دِ راته سم کاد سقر مخ

پہ حضور دَ هجری هسے رقیب زیر شه
څو پہ ګنج دَ لحد زرد شی دَ کافر مخ

---

که بنکاره کړی له نقابه منور مخ
له انواره به تغیر کا دَ قمر مخ
قمر څه چه به سیالی کا ستاله مخه
تر نسبت یے مکدر وینم دَ نمر مخ
صفائی دِ دَ رخسار هسے بنائست کا
چه له رشکه یے اصفر شه دَ ګل مر مخ
اوس دَ زلفو پہ زیب ملک دَ هندا خلے
دَ روه ملک دِ پہ بنائست کړو مسخر مخ
چه خولې م ستا دَ مخ مشاهده کړه
را بنکاره مشه هرګز دَ بل دلبر مخ
دَ رقیب مخ هسے به راته بنکاریږی
لکه به وی مسلمان ته دَ کافر مخ

غماز هسے پہ حضور دَ هجری زیر شه
چه به نه وی دَ هیچا هسے اصفر مخ

# د

چه دَ زړه سرېږم وطن کړو دَ اشنا درد
په دوا به هرګز نه کړم بدل دا درد
دَ جهان خوشي ېم ځکه پس شاکره
چه بهتر تر شکر لاکنم دِ تا درد
هیڅ عاشق دَ عشق په زخم دارو نه ږدی
دوا سل ځله فدا تر دا زیبا درد
دَ هرڅیز عشق له دله دمیدهٔ کا
په هرچا چه نزول او کا دا صفا درد
دَ وآمق دردمِ ثانی دَ الم نه وی
بل حریف به وی زما دَ درد دَچا درد
غوږ به اونیسی مجنون راته په کوتو
که سایه یئے په کورا وکاندی زما درد
ما دَ عشق په تله وزن دَ درد او لید
دَ هیچا به هو مره نه وی په دُنیا درد
یارپه ملک راځنه پا تو درد دیئے نحی

تر یار چیر کنم بیشکه با وفا درد

دَعشق درد تر دوا مالره بهتر دے

هرگز مشه دَ هجرؔی له زړه جُدا درد

---

یا بیژن وَه دَ هغه چاه په غم بند
یا مِ زړه که یار دَ زلفو په خم بند
بیژن هم اِستم رها کړو له زندانه
عشق مِ تل زړه ته پیدا که دَغم بند
هغه دم چه ستا دَ زُلفو په خم بند شه
نورِیےٗ او شلاوه له پښو دَ عالم بند
چه په خم دَ زُلفو بند نجات یےٗ نشته
کله چا اوِیده خلاص په ارقم بند
که فریاد په قاضی کړم گِله دِ نه وی
ستا اُلږو کړو زما زړه په ستم بند
څو دَ یار مینه زما په زړه رقم ده
هومره سخت په کاغذ نهٔ وی قلم بند

زه هجرؔی هله آزاد وَم په جهان کښ
چه مِ نه وَه زړه په زلف دَ صنم بند

---

زړه چه اوکړو ستا دَ زلفو خم پیوند
پخپل ځان یې کړو سُور اور دَ غم پیوند
څوم زړه شه منتظم دَ یار په زُلفو
په جام نه وه هو سره زړه دَ جم پیوند
دَ غم بار یې په زړه هسې رنګ ثقیل شه
عجب نه که بیل کالو یې وکړم پیوند
زه دَ تیر عمر په یاد خاطر تازه کړم
هجر بیا کاندی په زړه الم پیوند
تیک دړې یې په اوربل هسې جوړه کړه
لکه وی په رباب زیر و بم پیوند

دَ هجریَ دَ کار صورت ځُله ویزار شه
ګوندې بیا یې کا دَ خدای کرم پیوند

---

لکه هجر که زما په زړه بُنیاد
هسې داغ به هر ګز نه وی دَ چا یاد
چه لا نه دی اوبه شوی له غمونو
دَ زړه سرم مشدّد دې ترفولاد
هر ستم چه مین کا چاره م نشته
د دلبر له جوره نه کا څوک فریاد
ما به سل ځله فریاد هم په چا وکه

که مونده لے چا دَ دوی له چوره داد
دَ هجران الم به ما زیروزبر کا
ستا دَ وصل څو را اُورسی میعاد
خاصیت دَ زمانے په ځیره ګوره
باوجود رنړا دَ نمر واړه سواد
تا به کله هومره شنده مے په هجری کړے
که مے صبر ستا له مینے کړی فواد

---

عمر څه شکل کړنده مے لار لکه باد
بلکه نه لرم تیز باد هسے په یاد
دَ شباب حُسن پیری همه تاراج که
له ستمه یے په چا اوکړم فریاد
غم دَ هجر مُبرّا کړم له فریاده
کشکے زه وے په خلقت کښ یوجماد
پس ترخو دِ عیش را اُونیو فلکه!
لا به کله خوازه راکړے دَ مراد
په هرچا چه زخم بِ دے مرهم بِرکیدے
چرے نه چه پما هیر کړے خپل معتاد
کله بخت سپهر هسے کج وکور کا
لکه رونده شی په خطا دَ کاتب صاد

بے موسمه ونه کله میوه کاندی
هر مهم هسے موقوف دے په میعاد
گویا مارښا هرگز لیدلے نه وه
درست دکن را باندے هجر کښے سواد

چه لانه دے د فرقت انده وه خوړلے
هجری زړه د بس متین دے تر فولاد

# ذ

چه یې ساز کړو په عذار و تور معاذ
بې رُخصته م زړه اوکړو اهتذاذ

ده هوس دَ کتو کړو په لُومه اونښت
دایم ځکه یم په در دَ یار ملاذ

مایې خوند دَ لبو یاد که په ښاباتو
دل وې څه دے دَ دے کاښو استلذاذ

دَ آرزو اظهارم که عتاب یې وه کړ
بد ویَیل یې با مزه وولاتر فاذ

که م قصد دَ وژلو کړی پُښتنه څه ده؟
په عاشق دَ معشوق امر دے نفاذ

نه مِ بل طرف پکار نه په روان شم
ستا جناب زما وطن دے هم لیاذ

وفانشته په وعده دَ کُلرخانو
دا دولت بختور مومی وے شاذ

دَ خټک مرتبه لویه ده تر بازو
خو وَتا ته بې وقار شه لکه خاذ

چه پرواد په ژړا دَ هجرؔي نه شي
زړه دِ سخت کړم دلبره تر فولاذ

څو شفقت لري اشنا ستا التذاذ
هرګز نه لري نبات دا التذاذ
نبات ستا په لبو څه رنګ څوک نسبت کا
چه او نه لید هسې شان چا التذاذ
دَ دوران په شیرنۍ به مې ورنکړم
چه معلوم کړ وستا دعشق ما التذاذ
وفا هر چا ته لذت ورکا دَ شکلو
له جفا مومم زه ستا لا التذاذ
دا الذت ستر ګې حاصل له ګُلُه نه کا
لکه ورکا دَ یار میم خا التذاذ
سودا ګر دَ قند وسر وهي په لا سو
چه پیدا که دَ دُنیا شا التذاذ

هجرؔي وار دَ وصال څه شکله لذیذ دې
خو هجران یې آخر سم کا التذاذ

ککه زه یم ستا په در کښې تل ملاذ
هیڅ عاشق به هسې نه وی بل ملاذ
وفا هسې دَ بندهٔ په زړه میشته ده
ککه ستا په ژبه تل زودل ملاذ
نسیم محو دَ ز مکې واړه زرکشې کړه
بلبل تل وی نن ساعت دَ ګُل ملاذ
دَ زړه کور به دَ هغه دَ غوښنو نه وی
چه به نه وی په بهار دَ ګُل ملاذ
دَ فرقت په نوک به کله تل زخمی وه
که دَ ګُل وے همیشه بلبل ملاذ
عاشق اسانه مه ګڼه چا هسله
عاشق تل وی په حیات د اُل ملاذ

دَ هجری قادر به څه په هغه یار وی
چه یے ده غونډے په در وی تل ملاذ

---

مکان څکه په جهان که غر معاذ
یا یے اونیو له حیا مګر معاذ
ګهے پټ وی له حیا پکښې لیده شی
که ته ورشے دَ کوهی په سر معاذ
په هغه زمان یئے تیښت اوکه له خلقه

چه ظاهر که په بنه مخ دلبر معاذ
له عُذارو به یې ګل همسری نه کا
که خجلت واوری له چا دَ تر معاذ
تو رمعاذ یې په بنه مخ هسې لیده شی
چه یې هیڅ که په خوبه اخضر معاذ
همسری یې ولې کړه دَ یار له زلفو
چه پریشان که په هر در بشر معاذ
هجرَی هیڅ رقّت پرې مکړه سزاوار دے
په مستی که خپل غیرت ابتر معاذ



که پیدا کړے دَ نقره وُ په عرعر نمر
په رضا به دِ غلام شی یا نوکر نمر
ستاله مخه دِ هاله برابری کا
چه له تنه کا پیدا مښک وعنبر نمر
که دَ لاس په زیب دِ نازکوم رواد ے
چه بریښنا یئے مکدّر کا مُنوّر نمر
تا خورے زلفینے مخ په آئینه کړے
ما دَ چا په تورو مزیو که مستر نمر
هره ورځ دَ شپے گیسو په جور پرے کا
له مشرقه سحر او کاږی خنجر نمر
که عاشق دِ په مخ نه دے له گردونه
سکه په زمکه و لے گرځی در په در نمر
پرورش دَ لعلو کا مقصود یئے ته یئے
کنه خه یئے په معدن چه کا نظر نمر
دَ مخ رشک دَ زیر نارنج دَ غم په تپ کښ

دیکو ځکه لوزه کا دَ عزه په سر شمر
که فلک په ستورو نازلری دلبره
ستا زیور همه اختر ځنے قمر شمر
په تش نور دَ انکیو فخر کاندی
هرګز نه لری دَ حُسن بل زیور شمر
په عاشق دَ مهر اور خصلت سقو شه
جوړه تا ځنه تیار وینم سقر شمر

که په مخ دَ هجریؔ وار قلندر نه شه
تو خضر یئے وے غوره که سقر شمر

---

ماچه اولیده په مخ دَ مستے شا نُور
دَ مهتاب یئے کړو بیشکه پسے شانُور
دَ مخ نور یئے زه دَ څه سره تخی کړم
چه به هسے په ملک نه وی دَ هیچا نُور
شاید شپه به توره نشی تر ابده
که دِ مخ کا یو ذره ورته عطا نُور
مخ یئے اوګوره زاهده حق بیان کړه
چه لری مهر په مخ هسے والا نُور
دَ خټک غونډے به مست بیهوش کړے
که دِ څه خو په سر او بر لیبنی لعم دا نُور

تورے څنے دَ شپے غوځے په زنځیر کا
په مشرق چه صبح نمر کا هویدا نور
څو قایم په دا فانی دُنیا فلک دے
اوله نمره نزول کاندی په دُنیا نور
تورے زُلفے دِ دایم شملے شملے دی
له بنه مخه دِ هرګز مه شه جُدا نور

## دَ بنائست دَ زوال د موه له سپهره!
## چه تازه لری هجوری په دور ستا نور

هرګز مه شوه له دره مشتاقان نور
ستا سکان دِ مسلسل لری سکان نور
ستا دَ در سپی چه م اولیدل دلبرے
په دُنیا په آخر څه رنګ دی شیران نور
که هر څو دَ شپے شیران دی ګمان مکره
چه عُشّاق دِ شی له کویه ګُریزان نور
ستا با ور که په دا نشی څه مشکل دی
تجربے لره خرید کره زدسکان نور
تورے سترګے دِ دا روال تومن یے ګوتګری
له دے هسے جوره بس کره قزاقان نور
که دَ یار په مرګ راضی یے صرفه څه ده

پتا نشته دَ عاشق دَخون تاوان لور
که زینت اسباب همه تا ته موجود دے
تر دا کله وی دَحُسن نور سامان نور
ډیر ستم یے عاشقان واړه کباب کړه
له جنا به یے هم کم کړه رقیبان نور
هرچه ستا دَ هجران غم یے په بنده کا
په مسلم به زیاتی څه کا کافران نور
دَ وصال په تیغ یے سر له تنه بیل کړو
پما هسے دَلیر مه لره هجران نور

## دَ پردیس هجری وینا که مسته نغوژی
## تل دِ نا ست لری له ځنګه عاشقان نور

---

چه قرار م دَعشق اوکه بدل مه شه دا قرار نور
مطلب میسّر شه زه به څه کوم بل کار نور
که تهینګ په دا قرار یے دامن مه پریږده دَصبر
په جور یے هوس کړه کِله مکوه دَ یار نور
شاه به شم دَ دور که مِ نوم په غلام یاد کړے
خټک تر دا فدا هم دَ خټک غونډے هزار نور
ډیر دِ بے آتشه اور لرونی دَ تنور کړه
قسم دِ پخپل مخ وهرګز مکوه آزار نور

یو ځل دَ وصال دارو ورا و نجښه چه روغ شی
بے لتا صنمے هرګز نه پالئ بیمار نور
ما دَ هغه مخ بناګوست چه اولیده په سترګو
یاد مه شه په ښه زیر ګلونه دَ بهار نور
دَ مخ بناګوست یے ډیر دے نور صفت یے ثنا شی
تم به دا غزل کړم هم به دا یوه ګفتار نور
بنه بهار یے جوړ دے ځکه تل هسے دُعا کړم
دَ دهر خزان مه وه دَ دے حُسن په بهار نور

اسرار دمحبّت نهان بهتر له زمانیو
جبر په الم کړه هجری مکوه اظهار نور

# ز

سحرگاه که اهلِ دل رب ته نیاز
هغه دم وی دروازه دَ قبُول باز
که خبر شے ته دَ نیمو شپو له فیضه
او به نکړے هغه وخت دَ پښو دراز
دَ تن شاه دِ وزیران لری دَ څنګه
یو ته عقل وائی خلق بد ته آز
دَ دانا وزیر له وعظه دِ بلا شوه
بیهوده پند و نه اخلی دَ غماز
دَ معنو په یافت یے ځکه غور نکړ
چه غلط یے په دا باد نقش وطراز
دَ راز فکر به دِ واچاوه له دسته
که ته پوے شوے دَ حرس دَوو ے پرواز
مګر نه آزوی په غوږ شتاب دَ عُمر
چه ګړیال یے ګُذر شماری په آواز
هر نفس دِ ذخیره وی چه ستا له عمره

یو ساعت نکه باد تیرشه بل آغاز
نیک عمل مردانه نیسه هسے مشه
نکه مرد شی کله بنځه غلیواز
دَ ختک په وینا غور کړه که عاقل یئ
روا مه کړه جاهل غوندے اغماز
مرګ له هیڅ مروت دَ رُخصت نه کا
په فرصت کوه دانا دَ توښے ساز
دا غزل چه نن هجری ختک بیان کړ
سرتر پایه حقیقت دے نه مجاز

---

نن له کبره ځکه نه کوی نظر کوز
چه تر مخ یورے زینت کښی دَ نمر کوز
ته کړے ناز که په بناګُست بیځایه نه دَے
چه له شرمه ستا دَ مخ کوری قمر کوز
ستا دَ وصل په اُمید م عمر تیر شه
ما دَ بخت له وُنے نه که هیڅ ثمر کوز
که په توره شپه مخ سم کړے په سپهر
محبت به یئ له چرخه کا اختر کوز
صبا زُلفے یئ پریشانے په رُخسار کړه
چه له نرخه په دُنیا کښ شی عنبر کوز

رنځ مِ هسے دَ هجران غمونو زیر کړو
چه تر رنځ پورې یې رنګ وینم دَ زړ کوز
مادَ قیاس په تله غم دَ هجران تول کړ
تر نسبت یې هویدا شه لواغر کوز
چه تاراج یې ستا دَ سترګو تجربه کړه
په دا کار کښ هغه اولیده خیبر کوز
رقیب هسے ګوری کوز دَ یار په در کښ
څو دَ حق په در کښ تل ګوری کافر کوز

یار له کېږه هسے غوږ په هیچا نه کا
لکه همّت دَ هجری نه کړو چا ته سر کوز

---

عشق پیدا که په همه عالم زما راز
ولے بنه چه فاش مِ نکړو دَ اشنا راز
دَ عاشق راز که پیدا شی عیب یې نشته
شکر شکر چه مِ نکړ پیدا ستا راز
که وآمق له خامحه راز دَ عذرا فاش کړ
زه به نکړمه پیدا دَ خپل عذرا راز
هر میځ دَ خپل دلبرا سرار څرګند کړ
خټک نه دے هسے خام چه وائی دا راز
راز په زړه کښ نهان بنه دے دَ بتانو

هغه اوم دے چه په دهر کا رسوا راز
هغه راز چه م پنهان دے په خاطر کښ
فاش به نشی له بنده هغه خفا راز

دَ جفا بار به یے ورمه ژوندہ یم
زه هجری به دَ یار نکړمه پیدا راز

# ز

چه لذت دَ جوړه لبو دے دَ یار خوږ
هسے نه دے نیشکر دَ هندوبار خوږ
هیڅ خواږه به یے پشان دَ لبو نه وی
کوندِ وی په مزه هسے دا اشعار خوږ
زر په زر یے شیرینی هجر کنه یر کا
که هر څو وی په دُنیا دَ وصال وار خوږ
زمانه یے لاس په لاس په ژړا سر کا
که هر څو دیدن دَ گل وی په هزار خوږ
چه دلبر گُل و مُل چا ته میسّر شی
بل به نه وی په جهان دا هسے کار خوږ
غنیمت کنه دا کار همیشه نه وی
په چا نه لری فلک ساعت قرار خوږ

هجری حُکه هو مره ناز په طبیعت کا
چه په دهر ترده نشته په گُفتار خوږ

تا چه سر کړو دَ زُلفینو په عُذارکوبر
غم دِ سر کړو دَ بنا دیه په زړه دَ یارکوبر
محبت پړکړے زړه به پړے کښه مه
که را ؤ بخښے دَ کجو زُلفو تارکوبر
ستا په مخ هسے کا بزه مارونه وینم
چه به نه وی په کنجونو هسے مارکوبر
بیا به ډیر په لار روان دَ آخرت کا
چه یے جوړ کړو په سینه دَ دُرّو هارکوبر
سم کاته یے عین غشی هاله کوزشی
چه نظر دَ ستړکو اوکا نه ی نګارکوبر
هومره کبر دَ خپل مخ په زینت مکړه
زمانه کا په شتاب دَ حُسن وارکوبر

خوب یه څه شکل په قرار کا نهِ بے یاره
دَ هجرؔی په زړه کښ مات کړو هجر خارکوبر

# س

ستا له مینے به زړه کله شی زما بس
ماغریب سره لتا نه دا بلا بس
نه شکیب دَ عاشق شی دَ یار له کویه
نه خاطر دَ حریص کا ندِ له دُنیا بس
په خلوت چه ته رقیب پُښتے له حاله
مګر مرګ لره مِ نه ده دا جفا بس
ماجفا ته ستا په مینه هسے شاکړه
لکه ستا خصلت چه اوکړه له وفا بس
ساقی نن روغ وته ست کوه دَ میُو
ماخراب ته ازلی دَ عشق صهبا بس
بیهوده نصیحت ولے کړے واعظه!
زما زړه به هرګز نه شی له اشنا بس
ته روا عمل کوه چه لوَم دِ بنه شی
ما هجری لره دی زشت و نا روا بس

دَ سپین مخ ضیاء یې حُسن کړو دَ ماه بس
دَ سنګار په دبدبه یې دور که شاه بس
دَ ټیکې دا دوه لسږی دې دا شه کوره
په میدان یې که زینت دَ فلک راه بس
تورې سترګې یې په لوټ هسې شوخې کا
چه خیرې یې په دا کار کښې دَ تیراه بس
هر زینت چه په دا دور کښې لیده شی
تن په تن یې که همه دَ ذقن چاه بس
او دې نیې تو له په سر کیږ ده غره کښینه
چه زینت یې کا په دم دَ شاه کُلاه بس
که خسرو دې په تراب دَ جناب کښینی
هغه دم به هوالې کا ندای دَ ګاه بس

هجری مینکو تل نخوت پخپل قیمت کړو
بنه چه نرخ یې که دَ یار دَ خط سیاه بس

---

لکه تاته عاشق سپک دے ترهلک خس
شاید نه وی په دُنیا کښې هسې سپک خس
بلکه تاته لکه ورک وقار دَ یار دے
هرګز نه وی په عالم کښې هسې ورک خس

چه مې کیف ستا دَ سترګو تجربه کړو
ځې همه را ته ظاهر شو دَ بنګ خس
لکه ستا نظر وجود دَ عقل هیڅ کا
مګر هیڅ هسې ګولئ کا دَ توپک خس
ماچه اولیده و لذت دَ هغو لبو
تر نسبت یې نبات وینم دَ اټک خس
رقیب هسې بد خصلت په جهان خس که
څو په طیر و کښ وقار دَ بنا پیرک خس
ستا دَ مینې لاس مې تن هسې ریزه کړ
لکه څوک په زور ریزه کا دَ کوتک خس
عاشق څیلې مینې تا ته هسې خس کړ
څو په درست خټک کښ ذات دَ درملک خس

په هر ځائې یې قدر ډیر دې تر پهاړه
څو و تا ته که څیل زړه هجری خټک خس!

---

ستا په مینه هرګز مشه مبتلا کس
مُبتلا مکړه مولئ په دا بلا کس
چه مې غم دَ هجر اولید هسې وایم
چه هرګز له یاره رب مکړه جُدا کس

چه حرام کړې زاهده عشق دَ جونو
وایه کوم یو عیش په ځان کاندې رواکس

زه هیران په داخبره یم یارانو
په دُنیا بې یاره څرنګ کا خندا کس

دَ وقار نهال دِ هسک وینم دلبره
دَ وصال میوه دِ څشکل کا رِ جا کس

ستا زلفینو زخمي کړے نه رغیږي
که په ډیر ضرور یے اوکاندې دوا کس

نُور یے ډیر تر ماه و مهر مُنوّر دے
ځیر یے څشکله دَ مخ کوري ضیا کس

دَ بوسے وعده دایم صبا برات کا
زړه به څو کاندې تازه په داوینا کس

هیڅ باور په عُمر نشته بے وفا دے
اُمید څرنګ په وعده کا دَ فردا کس

ستا دَ خوې جفا چه ما مشاهده کړه
په دُنیا کښ هومره نه لري جفا کس

جفا کار تر تا هرګز په جهان نشته
لکه نه لري هجري سیال په وفا کس

چه په زړه بانده مې عشق جوړ که اساس
بېخ یې اوکیښ له هغه دَ بل وسواس
که په تیغ مې ستاله دره مناهي کا
ستا په سر کوکه هرګز اوکړم هراس
پس مې اوونه په توره دیت نشته
یو نفس چېنې اول راکړه په لاس
مګر ورو ځو دِ په وژلو کوتاهي کړه
چه دِ خال کړو په رُتبه تر دوارو پاس
هر چه کا دَ هجران غم په لړمانه کښ
هسې نه کا کار په چار یزه الماس
دَ فرقت فوځونه ډېره دلیري کا
ساقي پریکړه تر معتاد دَ میو کاس
په دا لار به قاصد څه راځي له یاره
چه یې زړ کړو هغه دوري زړ یې مواس
زه دوشش نارسې وهمه خال پیدا کا
فلک بیائې دَ خپل زړه په رضا طاس
لار همه راته مشکل شه ګوره څه شي
په وتیل مې کُمان مکړه دَ لباس

که هزار بلا ګردون در ته پیدا کا
هجري مکړه دَ مولا له فضله یاس

# ش

روان نه وے زه دَعشق په کوشه کاش
تل په منع اشارت کا وعظ تاش
عجب څنې مې پیدا کړو عشق یې نوم کړ
په صفحه دَ روزګار بیچون نقاش
شه عذار یې مُصَفّا تر لاله کل دے
پرې یې جوړ که بنا سته دَ مښکو ماش
صد جفا را سره کا وفا مِ کوره!
ما هوکز نه که یو راز دَ مینے فاش
په حیات دِ له دربارہ تلوني نه یم
پس له مرګه مِ ور مکړه چاته لاش
کشکے نه وے ماد عشق شهر لیدلے
په بلامِ آلوده که خیل معاش
دَ وصال اُمید په لاس یې دَعیش راکه
که یې هسے ترخوله او وتے چه باش

نیک وبد په ازل لیک نن یې ظهور دے
دامن چا دَ مراد اونیو په تلاش
که طلب په کوشش کړے دَ نعمتونو
په پیر آز به حاصل نه شي یو خشخاش
دَ خورشید پایه دَ حُسن کمه نه که
که رونق وته یې نه ګوري خفاش

دَ هجريؔ وئیل عزیز په سخن سنجو
دَ اشعار قدر یې څه لري اوباش

---

څه خواو ګوري سړیو دا فاتر کیش
چه رانیسي له عالمو نه ناظر کیش
چه یې چا سترګے په فخ کړے برابرے
په زمان یې سترګورا ونیوه آخر کیش
لطائف یې دَ بنا ئُست تر پوله تیر دی
چه په خوئ به نه وي بل هسے جابر کیش
په آزار دَ مؤمنانو حیله نه کا
چه به نه وي په دُنیا هسے طاهر کیش
چه آزار دَ مؤمن هیڅ کښي سړیو
ورته څه هغه بشر چه وي کافر کیش

دَ زړه حال یې څه خو واورید سے په عوږو
چه یې کوم منی په دهر کښ خاطر کیش

تش بدن په دکن ناست غمونه ژوی
زړه یې یوور دَ هجری هغه ساحر کیش

---

یار ته ځکه ما په مینه که خپل سر پیش
چه یې وینم دُر دَ حُسن تر قمر پیش
قمر څه چه یې سیالی کاندی له مخه
چه یې خلق نُور دَ مخ گنی تر نمر پیش
نهایت دَ عشق دَ لارے موندہ نه شی
و هیچا ته هرگز مه شه دا سفر پیش
شیرین عُمرم قضا که په هجران کښ
رنګ م ځکه په زردی شه تر گُل نمر پیش
دَ هجران غم به دا هومره شوخی نه کا
که یو ځل شی په ختک دَ بخت اختر پیش
هسے درد به هرگز پیښ وَچا ته نه وی
چه دَ یار یاد یې وماته کا سحر پیش
په ویښو دیدن محال سحر اوده کړم
وایم گوندے شی په خوب هغه دلبر پیش

گلرخان په رنګ و ذات التفات نه کا
چه په لپو ورته نکړے سیم وزر پیش

داعذاب چه نن هجری ته هجر پیش کړ
په دوزخ کښ مګر هم شی په کافر پیش

---

په عاشق دِ سنګینه زړه مهربان شی
په وصال یے خراب ملک دَ زړه ودان شی
نه نه مکړه چه دِ تیغ آلوده نه شی
هجره ته یم په کشتن یار ته ضمان شی
که زما په مرګ راضی یے تاوان نشته
تُوره اونیسه په لاس کښ را روان شی
چه همیش بوسه دَ سر په بها پلورے
دَ بناګوش دبدب دِ دیرلو ګویان شی
په دامونو کښ یے څو زړونه پراته دی
په پنجه دِ دَیار تاوُ دَ زُلفو وران شی
چه په لاد دَعشق څوک حی جریده بنهوی
طمطراق دَ رسم ورک هم یے سامان شی

چه یے قدر دَ وصال درته معلوم کړ
هجری خوش په عذابونو دَ هجران شی

# ښ

یارم حُسن دَ مخ کوت په آئینه کښ
وے یے نشته هسے بل په زمانه کښ
ما وے حُسن دَ دلبر دِ زمکه داغ کړه
هم یے اُور که دَ مهتاب په سفینه کښ
ته عاشقه: دَ خپل مخ یے حُسن کوره
آئینه دِ لا زخمی کړه په سینه کښ
ما به ستا دَ زُلفو تار په بها خپل کړه
هومره زر که وے دَ چا په خزینه کښ
دَ مخ رشک دِ داغ پرے کیسو ترا بده
لاله کله سود حاصل کړو په کینه کښ
ختک ځوک چه هر نفس طمعه دیدن کا
یو نګاه دے لوے دولت په مهینه کښ
دا ستم به ستا دَ زلفو ځوکه پرے کا
کله دیر عمر ځوک مومی په فتنه کښ
شکایت به ما هاله کړ ستا له ځویه
که تاثیر دَ انصاف وے په رنګینه کښ

له خوږو لبو دِ تلخه وینا خیژی
مولا زهر کړل پیدا په لوزینه کښی

ہجری نوی یار ته څه لره هوس کړے
ته چه نه وینے وفا په دیرینه کښی

---

عشق دِ هسے شورش کا زما په زړه کښی
لکه وُروږے په جامه څوت په اوبه کښی
په مسپین مخ دِ تورے زلفے آشفته دی
ما وے اوږمه هویدا شوه په اوره کښی
په سوزش به ستا یا قوت غونده نامی وُ
هومره تا وُکه مُهیّا وے په سکاره کښی
زیږ لباس دِ په بدن هسے زینت کا
لکه زیږ گلونه واشی په راغه کښی
ما خاطر وتا ته درکړو چه ساته یے
کوم انصاف دِ رعایت کړ په ساته کښی
دَ عشق غم دِ اثر دیر ترهغه تیر کا
څو یے بریت دَ مزری کا په لړمانه کښی
دَ شکیب غوام یے ماته کړه په څو کښی
عشق پلنگ غونده مے مخفی وُه په زاوه کښی

دَ هجران فکر بیهوش لکه اُوده کړم
څوک به څه طمعه دَ هوش کا په اُوده کبن

زړه مِ طمعه دَ انصاف کا له رقیبه
خاصیت دَ بازو غوارې په وراغه کبن

چه کینه دَ دوهٔ مینو په وصال کا
څوک به ظن دَ خیر کاندی په هغه کبن

شراب کله تاثیر هومره په سرې کا؛
لکه یار چه هجرې مست کا په کاته کبن

---

ذات دَ وصل هرگز نشته په جهان کبن
ځکه ما عُمر قضا که په هجران کبن

ژړا نور چرته هم شته په دا وګړې
که یو زه همیشه ناست یم په فغان کبن

هجر هسے په دُنیا زه مُدّعی کړم
گویا زه یئے قرضائیٔ وُم په زمان کبن

که اثر دَ بنادئه وے په دا نابوده
ما به وے ځیگر خون کړ په احزان کبن

زه په دا صبر دَ زړه کړم له ارمانه
چه هر زړه ترلے وینم په ارمان کبن

مګر ما په خوب لیدلې وه دَ وصال عیش
چه هجران یې راتعین کړو په تاوان کښې

سرمایه دَ حیات غم پس یې نابود کا
څوک چه راشي مسافر په دا میدان کښې

په شربت دَ شنه سپهر مینه مکړه
قاتل زهر یې ګډ کړي دي په خوان کښې

چه دایم هجري دَ غم په غشو ولې
چرخه کوم ګناه دِ او لیدله په حیران کښې

---

ښاسته وفادار نشته په زمن کښې
نه ګل او لیده باوفا چا په چمن کښې

په وینا به دَ هیچا وفادار نه شې
چه پیدا کړه رب جفا په هغه من کښې

دلبران دَ جهان واړه جفاکر دي
ولې یار غوندې یو نشته په تومن کښې

چه زما په دور بوې دَ وفا نشته
پیدا مه شه پس لما په دا ګلشن کښې

که په زړه دِ ګل له جوره زخمي نه وې
عندلیب به ناره ولې کړه په بن کښې

بیهوده څنې اُمید کوې بُلبله!
وفا مه غواړه دَ ګُلو په وطن کښې
که ظاهر صورت روغ وینې دَ بُلبلو
پو نفس یې زړه روغ مه ګڼه په تن کښې
چه زاری دَ بُلبل نه آوری روان شی
هرګور دیره جفا وینم سوسن کښې
خټک یار ته ځشکل نه ګوری واعظه!
چه دَ خُلد جونه یې ګوری په روزن کښې

بُلبُل کله په وفا دومره نامی دے
څو هجرؔی ځان هویدا کړو په دا فن کښې

---

ستا دَ مخ په څیر ګل نشته په ګُلشن کښې
که هر څو یې څیر څیر ګورم په چمن کښې
شاید وی په هغه ملک دا هسې جونه
ګڼه نشته ستا څیرنه په زمن کښې
ښائسته به یې نور لاف دَ حُسن نه کا
که دَ مخ بریښنادِ او شی په خُتن کښې
تل به ما غوندے همیش په قرار نه وَه
که مې یار غوندے جمال وے په دمن کښې

دَ کندو زور به هرګز ور پاتے نه وه
که زما په دود آتش وے په کوګن کښ
دَ بڼو په تیر دِ مات کړه درے ورے
ځان مِ نغښتے وُه دَ صبر په جوشن کښ
ماچه بوُئے دَ تورو زُلفو تجربه کړ
هرګز نشته هسے بوُئے په یاسمن کښ
په ګُلشن کښ به شاه دے وُه تر ابده
که لبِ شان یئے دَ غوټه وے په سوسن کښ

ما خټک غوندے هزار پکښ پراته دی
خدائے یئے هسے کوهے ساز کړ په ذقن کښ

---

بهاری میلمانه راغله په چمن کښ
دَ بلبلو زړه یئے یوړو په دیدن کښ
رنګا رنګ جامے اغوستے حرکت کا
ګویا اوړکے دَ عید ګرځی په برزن کښ
که مِ یار یو ځل ګذر په ریاض اوکا
دَ ګُلاب قدر به هیڅ شی په ګلشن کښ
دَ مخ زیب که یئے ته اوویئے بُلبله
نور به نه اوسے دَ ګُلو په وطن کښ

نه چه دم په دم صفت ځنې آغاز کړے
کوم رونق دے تالیه لے په سوسن کښ

که په خوب کښ یې صورت مشاهده کړے
نور به ما عوندے مننګ شے په زمن کښ

چه خبر یې دَ بناګوشت له حاله نه یے
ځکه ویښے ته خولې په یاسمن کښ

دَ عارض لنبه یې جوړه په لاله شی
چه سرپټ کاله حیا په پیرهن کښ

دَ قرار ځائے مې هرګز په دُنیا نشته
ځکه ګرځم همیشه ستا په روزن کښ

په هر زره دَ عشق لمبے دی چه بلیږی
هسے اُور دَ ستر ګو بل کړ په تومن کښ

یو نګاه دِ امیران حلقه بګوش کا
څو شرف دِ مولا کیښښ په دیدن کښ

چه یې دوز کاندی اول په تار دَ زلفو
دَ عشق مړے هله کیږدی په کفن کښ

چه دا هسے دیر ستم دَ اشنا خوئ شه
دَ هجری ژوند ون محال دے په وطن کښ

ښا ئسته دا هسې نښته په ختن کښ
نه گل تا غونډے لیده شي په گلشن کښ

یو ځل ورشه خرامان دَ باغ په سیر
چه گل واړه شرمناره شي په چمن کښ

تل دَ زړه ښهر لوټے تن خبر نه شي
ځو شتاب دِ رب پیدا کړ په تومن کښ

ما دَ یار سره مجلس کړ رقیب راغے
مگس پریوت دَ چنبیلو په روغن کښ

له ستم دِ تیښته څرنگ کړم دلبره!
زړه بندی کړم ستا دَ زلفو په رسن کښ

له زنځیره به تل یار لکه بنده کړه
که زما غونډے مستی وے په کوکن کښ

جُدائی په هغه زړه هجری تو ئے کا
چه دَ عشق خوشے یئے وینې په خرمن کښ

دَ دیدن لارے یئے او نیوے غنازو
په غلا ځکه یار ته گورم په روزن کښ

که یئے زیب دَ گوتو او وینے چنبیله
ځان به ورک کړے دَ کلونو په تومن کښ

که یئے شان دَ ذقن او وایم صد برگ ته
بے حیا دے که بیا دائیشي په بن کښ

دَ یار نام یې میدان وارہ لیا لب کړ
بندہ نہ لری بل عشق دَ زړه پہ تن کښ

غم بہ هو مرہ دلیری پہ هجری نہ کړہ
کہ یو گل دَ یار پہ رنګ وې پہ دکن کښ

دا گناہ بې شکہ وینم پخپل من کښ
چہ یې بند کړم ستا دَ زلفو پہ رسن کښ
دا سرکش زړہ را پیدا هسې بلا کا
چہ بہ نہ وی دا بلا پہ هیڅ دُشمن کښ
زہ چہ زړہ اختہ پہ اور دَ محبت کړم
لوېِ غلیم مې تر دہ نشتہ پہ زمن کښ
هر با نہ یې هسې سور زما پہ زړہ کښ
لکہ کیو چہ نیزہ سرہ کړہ پہ پښن کښ
زہ اصلی ملنګ پیدا پہ جهان نہ وُم
دَ یار مینې در پہ در کړم پہ توّمن کښ
دَ فرهاد دَ مجنون دور ګذشتہ شہ
نن امام دَ عالم زہ یم پہ دا فن کښ
هر زمان بہ خپنې غرامان طبیب وُہ
کہ زما پہ دود یې اُور وې پہ بدن کښ

چه داسترگے دَ ابرو دایۓ بانه دی
دَ ختـک روزګار حرام دے په وطن کښ

چه زما دَ عشق بازار په دهر دود شه
دَ مجنون بازار یۓ سوړ کړ په تومن کښ

که مقصود یۓ دَ عشاقو دَ بند نه وه
قضا چاه څه لره کند ستا په ذقن کښ

یاره یو ځلے په خوب کښ ورحاضر شه
هجری ستا غمونو زوړ کړ په دکن کښ

لاله ګل چه همسری کړه ستا له مخه
خجالت یۓ کړ اوربل په پیرهن کښ

کله کله یۓ په تش سلام تازه کړه
ختـک ستا ثنا همیش کا په دکن کښ

ګو یائی که مِ بلبل په غوږ و واورو ی
نور به ژغ له شرمه نه کا په چمن کښ

ګل په هیڅکله لاړ نه شه له ریاضه!
که هجری غوندے بلبل وی په ګلشن کښ

هسې پروت دے غم دَعشق زما په زړه کښ
لکه تاؤ مایه دَ اور نم په اوبه کښ
نه به عشق هرګز زما له زړه خارج شي
نه مستي دَ میو دروهي په ساته کښ
محبت هسې نسبت له زړه پیدا کا
لکه بوئے دَ ګلو مل نور په لیمه کښ
دَعشق اور نصیحت هسې مزید کا
لکه بوئ چه دا اوري کاندي په مښه کښ
عقل هسې غم دَ یار راځنه یوړ
لکه بوئے دَ لوئے دَ پوهے په اوره کښ
ماته مکړه حکایت دَ ګلرخانو!
څه آتش پوکے ظالمه په وابنه کښ
چه خبر دِ هجران کړه په بنو یارانو
سیخ دِ مات شه دَ سحر چرګه په خوله کښ
دَ رفتار زیب یې نسبت په زړکه مښه
څه هومره خولي نه لري په تله کښ
مړده ګل یې په مالش دَ پښے تازه شي
رب یې هومره شرف ایښے دے په پله کښ

نوش یې څه سره مثال کړم دَ لبانو
نشته هسې لطافت په هیڅ خوارده کښ

چه مزه یې څوک دَ شونډو تجربه کا
نبات هم ورته پیکه شي په خوا ږه کېنې

عقله! مه راځه هرګز که خیر یې غواړې
یار هجري ته شراب ورکړه په کاته کېنې

# ص

څو زما په زړه نازل شه ستا اخلاص
په دوران به د چا نه وی دا اخلاص
چه ستا مهر پیمانه وی فائده نشته
که هر څو ډیر دے لتا زما اخلاص
د رقیب په ګفته قهر راته مکړه
روزافزون لرم لتا رجا اخلاص
که یو ځل م د بوسے په عطا خوش کړے
را معلوم به شی هاله صفا اخلاص
څو د لب عینِ شکر خوئ د کنهٔ پرشه
لتا څه خشکل کرم رجا اشنا اخلاص
د زینت سیاله د نشته په دنیا کښ
ولے نشته ستا په زړه وفا اخلاص

د هجری حیات د نور په جهان نه وی
که بدل کاندی هرګز له شا اخلاص

په خدمت که ستا چه زه لرم اخلاص
په هیڅ رنګ یې اُمید مکړه انتقاص
که یو څپ په مهر راکړې نورِ وژنه
څوک دِ نه غواړي لتا زما قصاص
دَ بنه څخ خیر دِ غوارم زما څه دی
په سما نه یو لقمه کا تندرماص
ستا جناب زما وطن که اُور وریږي
طمعه مکړه چه به زه اوکړم مناص
یو نظر په واعظ اوکړه حال یې ګوره
چه په زمکه سیال پرې نه زدې یو وقاص
هغه اوم عاشق مامه کنه کلر ننګې
چه کوم دَ یار له جوره اختصاص
نور تلې دَ یار دَ پښو زما په سر وې
که یو ځل شم دَ هجران له دسته خلاص
هجر هسې زیږ نزار کړم ته به و لې
چا وینسته دَ بریتو وُرکه نه قصاص

دَ بوسې په عنایت را شه عطا کړه
ما هجري ته په عالم کښ اختصاص

# ض

ځوړم شوے دے له یاره انقراض
په ژړاړم کسیو اونیوه بیاض
زه دے شنه فلک په ځان کړمه سرپیو
اکثر کاړم کا په عکس دا غراض
په هنګام دَ وصال ځائے دَ رقیب نه وه
بیلتانه په مراد ورکړم دَ غماض
جدائیه سینه رائج کړه دَ غمازو
یاره ولے په راتله کوے اغماض
چه ته تل جفا کوے طمعه دِ داده
چه بنده به لتا اوکا نذی اعراض
که مِ توره په سر کیږدی لباسی یم
که له کوبه ذره اوکړم انتهاض
ډیره مینه یئے دوباره کا وصنم ته
بیچاره عاشق که شیر وی دَ غیاض
لاړ دَ هیچا په کوڅه دَ بنګلیو مشه
دوغ بدن یئے کاشانه کا دَ امراض

ستا په رنګ ښېره دَګل په چمن نشته
ګل یم وارَه مشاهده کړه دَ ریاض

راشه یو نظر په حال دَ هجری اوکړه
چه بې تا غمونو څرنګ کړه ومرتاض

چه څرګند شی په سنه مخ دَشاه لا بیاض
دَ کافورو کا په دم تر شا بیاض
صفائی چه یې دَ مخ مشاهده شوه
په دوران به دَچا نه وی دا بیاض
دَ سنه مخ په زمانه یې باور اوکړه
نمره سهل شه عالم ته ستا بیاض
چه یې نُور دَ نمر حریف دَحُسن نه دے
نُور به څه وی په دا شان دَچا بیاض
چنبې نُور په کبر تکړے پچپل حُسن
که ته او وینې دَ یار صفا بیاض
څو یې مخ بنده لیدلے وایم ربه
ورک یې مکړے دَ سنه مخ زیبا بیاض
هسې نه چه یو ځنګ په دا وینا دے
چه یې مشه دَ سنه مخ جُدا بیاض

زمانه واړه گویا په دا دُعـــا دي
هر زمان یې ترقي تر په لا بیاض

دَ هجري حیات به نور په جهان نه وي
که دوران یې کاله محه لا بیاض

# ط

چه م اولیده په مخ باندے دَ یار خط
هسے نښته په دوران دَ بل نګار خط

دا یے مینک دی چا په کانی میده کړی
بیا یے جوړ که دَ یزدی ګل په عذار خط

دِ هالے زیب یے په مخ دَ اورِ محو هیڅ کړ
چه پیدا شه په دا مخ باندے ګنار خط

نه دَ یار په خط میئن یم غیر به څه کړم
تر عنبرو که زیبا دے دَ اغیار خط

خط بنا ئست په هغه مخ کا چه زیبا وی
ګنه زر که هم لری هسے هموار خط

اوم نه لید هسے زړه په دا دُنیا کښ
چه یے اونکړ په سر باندے پرهار خط

هوش یے واره په ستم له هجرؔی یووړ
کوره څه کا په ستم دَ دے عیّار خط

چه مِ زړه اوکړ په تخ دَ یار هبوط
په داموئو یې دَ زلفو شه مضبُوط
له جفا به یې کنار شوم ولے څه کړم
په یاری کښ دا طریق نه دے مشروط
ارغوان څکه په وینو کښ لت پت شه
ئن یې ستا دَ تخ له رشکه کړ مخروط
دَ گُل گشت په ورځ دِ حُسن چنار اولید
لاس یې گُل په دُعا اوینول مبسوط
موانع یې بے بنادیو فتنه مه کړه
مدت اوشو چه رانغلل ستا خطوط
تل چه ژاړم ستا دَ هجر له الـمـه
دَ تخ صحن مِ په اوښکو کړ مخطوط

یو زمان یې جمعیّت هرگز اونه لید
څو هجرَی دَ یار له عشقه شه مربُوط

# ظ

چه یې نوم شي دَ زبان په سر ملفوظ
شیرینې یې دَ زړه سر کا سندِ محفوظ
و نظر ته یې بهتر تر خاورو نه وی
چاچه زُلفې دَ بُتانو کړې ملحوظ
په ناحق شکوه له عشقه کړې واعظه
ما به نکړې په دا یاد وعظ متعوظ
پس شاکه جفا کړې عُذرم نشته
په احضار دَ غماز مکوه غیوظ
څو یې نځ هجری لیدلے دادعا کا!
چه له بدو ستر گو تل اوسه محفوظ

که هر څو را سره یار کاندی اغلاظ
له غلطه یې زه مومم احتظاظ
صد چندان مهر په زړه لری وماته
څو په خوله را سره تل کا اغتیاظ
خاموشی مې سرّ دَ عشق پوشیده نکړ
ما ناحق دَ خپل زبان کړ احتفاظ
دَ عالمو خالق یو شریک یې نشته
په څو اسمه یې ذات یاد شه په الفاظ

حاجت نشته دَ هجری په واعظانو
دَ عالم له حاله اخلی اتّعاظ

---

لکه زه یم ستا دَ عشق په غم محظوظ
بل به نه وی په غم هسې تم محظوظ
څو دِ زه په دیدن خوښ یم هسې طور
په موندَه به دَ جام نه وه جم محظوظ
چه دَ هجر غم یې زور په خاطر اوکه
په آواز یې کړم دَ زیرو بم محظوظ
زړه دَ عشق په غم کښ هسې خرّم وینم
چه په ملک به هسې څوک وی کم محظوظ
هر تبه سې دَ خوبی هو مره والا ده
چه په یاد یې دَ نامه شی قم محظوظ

بادہ زُلفے یےؔ خورے کړه په رُخسارو
چه یےؔ بوُئےؔ کاکوروکلے چم محظوظ

هجریؔ هر غزل چه ته په وزن جوړ کړے
په لذّت کا دَ دُنیا عالم محظوظ

# ع

په بساط کښې چه څه شته زما متاع
هغه واړه وه دلبرے ستا متاع
ما چه سر و تا ته درکړ دُنیا څه ده؟
عزیز کله وی تر ځان فنا متاع
دَ عشق غم دِ لکه میم هسے خالی کړم
غم لرم لکه یو خال دَ با متاع
بے دَ عشق له غمه نه لرم په کور کښې
مګر او بنا لئے هجران جُدا متاع
دَ عشق لاف دِ هغه خام مُدّعی نه کا
چه سر نه کاندی کیا تر شا متاع
غم او اوبنکے ندیمان دی له ختکه
تر دا نه لری هرګز سِوا متاع

# غ

چه فروغ لری دَ مخ ںکه چراغ
گنجائش دے که په خلق کا دماغ
ساقی غم دَ هجر ډیره دلیری کا
بیا پے راکړه دَ مُلو څو ایّاغ
خوږ و لبو به یےُ قصد دَ وژلونه کا
که یےُ نه وے مصاحب له ښکه زاغ
دَ هجران متو دِ زور را بانډِ اوکړ
وسیله م دَ تسکین کړه را ؛ و باغ
دَ دیدن شوق دِ لا را بانډِ زور شو
له مثاله دِ خالی وُه باغ و راغ
په دا زیری به دوه کسی ترِ فدا کړم
که دَ یار دَ وصل څوک راکه سُراغ

۱ دَ دغه غزل دَ مطلع دویمه مصرعه په حاشیه
دا سے هم سیکلے شو یده ؛
ځائے لری که په عالم کا ندِ دماغ

نور به فخر په ظهور دَ داغ او نه کا
حقیقت که م لاله واروی دَ داغ
حادثه یے کیف ظاهر کا دَ یارانو
نیک و بد دَ زړو او کا ندی سُولاغ

دَ مقصود دَ ناوے زُلفے که په لاس وے
غم به او نیوه هجری ځاے دَ فراغ

# ف

نن بهار دے دَ فاف کیدۀ په کف دف
چه دَ ذرّه له ملکه مات کا دَ غم صف دف
بنه ساعت که په دُنیا غواړے هغه دے
چه موجود وی صنمی کُل دَ الف د ف
یو خیزبل هم بایدۀ دے په مجلس کښ
چه غم لرے له مجلسه کا سقف دف
نقاره سُرنا که وی خو بهتری ده
کنه بس دے خو دلبرے هم جدف دف
که همه سازونه بتول کړے په مجلس کښ
ترخپل زړغ پورے یے نه کنی خذف دف
دَ گفتار مضمون یے تش له مغزه نه دے
که لیدهٔ شی په ظاهر صورت اجوف دف
تُوره سر دَ هیچا هسے کیاه نه کا
خو په زړغ دَ اندوه سرکا نا علف دف

په هر ذره کښ چه عشق پروت دے دَ بتانو
لا یئ دیرکا په آواز هغه شغف دی
په ښهرو نو کښ که ښه وائے کابل دے
چه په هر لوری ئے سُرنا دی هرطرف دی
غم هرګز په کابل نه ورځي چه ورشی
نوریئے ذرکا دَ بلاد دَ تیر هدف دی
هغه ملک دے ځکه ښادانه وئیے نشته
چه ذره ئے نه لری هرګز دَ چاله هف دی
دَ سُرنا دَ ژغ خوبي پوشیده نه ده
ولے زه په دا ترِښه وینم صدف دی
نائے دَ تیر زمان قصه کوی غمژنه
په آواز که هرګز یاد نه کا سلف دی
چه آوازئے دَ هجریؔ دَ ذره تسکین کا
مولا مکړه له دُنیا هرګز تلف دی

---

هرګز سور نه کا حِنا هرګز دَچا کف
لکه وینم سور همیش دَ مستےٖ شاکف
نه ئے ځه خو دَ منګلو په رنګ ځیرشه
دَچا کله هسے سور کاندی حِنا کف
دائے رنګ دَحِنا مه ګڼه درویشه!
بلکه سور ئے دے په وِینو دَ اشناکف

نن فلک میں زما په رضا راو ست
شیرین دف واهه دفاق په زیبا کف
هنګامه دَعیش یې ګرمه فلک یار دے
ساقي ولے دِ تش وینم له صهبا کف
اے چه ګرم دستک کړے په دا مجلس کښ
همیشه دِ په آمان وُه له بلا کف
ستا جفا به ماجُدا کله لتا کا
هسے تینګ مې په دامن دے دَ وفا کف
هیڅ دلبر په عاشق هسے جفانه کا
څو پما باندے کُشاد که ستا جفا کف
هجري څوک په غم دَ هجر اخته مشه
کُشاده لره دایم په دا دُعا کف

---

چه یې جوړ که چاپیره خط تر عُذار صف
غم یې مات که دَ بنادي په زړه دَ یار صف
هغه ورځے چه دَ عشق جیش پرے نازل شه
ګریزان یې که له زړه دَ اختیار صف
مخ یې عین په خوبي رشک دَ ګلزار شه
په عارض یې راشه اوګوره دَ مار صف
سپین ګوهر یې په اوربل هسے لیده شي
لکه ستوري په سما وینے هزار صف

ته یې ور ځو ته عجب مشه خاطره

تور بانه کوره په چشمو دَ ننګالصف
زه بنادی په جهان کورم نه یې وینم
هر طرف که راته غم دَ هجر دَ یار صف
نهایت په یې لښکر دَ وصال مات کا
هجری څو به وی دَ هجر غم قطار صف

که اصغا کاندی په غوږو دَ اشعار واف
له حیا به نور او نه کاندی ګفتار واف
په وصال دَ ګلزار هو مره خرّم نه شی
لکه خار دَ جدایی کاندی آزار واف
هغه دم چه په ریاض ګلزار موجود شی
هر نفس یې په بهار کاندی چغار واف
شاید نور به دَ ریاض مینه ترشا کا
که زما دَ بیاض او وینی ګلزار واف
چه یې نه دی دا زیبا اشعار لیدلی
ځکه خوښ شه دَ ګلونو په بهار واف
هر دا ناچه دا ویل په غوږو واروی
نور به نه بولی هرګز زبان هزار واف
ځان په ځان یه م له علمه مستفید شی
که سبق له هجری اخلی صد هزار واف

دَ زړه سرېم کړو بېدا د هجر شګاف
ساقي روغ يې کړه په جام دَ مېوُ صاف
نن دَ عشق خسرو په مېوُ اشارت کا
له فرمانه يې په څو کړم انحراف
دَ يار مخ دائِم بهار لري دَ ګلو
په يو ګُل يم دِ نامي کا په الطاف
نيسان مخ دَ زمکې واړه نګينه کړ
ياران تل دروي دَ ګُلو په طواف
دَ هر ښاخ په څوکه نن سرود غزيزي
دَ عشق عيش يې کړموي جيش دواف
دا طامع مطربان څکه کړي نه کا
چه له ورکړو که زلميو ځان معاف
دَ انعام لځوره واکا نسه زلميو
چه سرود کا دَ بُلبل په ژغ مضاف
چه دَ عشق په لار يې ځيُ دَ سر صرفه کا
مُدَّعي وي په دروغ کا واړه لاف
دَ چا زړه چه موافق په ژبه نه وي
دَ مخ رنګ يې شه ما نا په سر دَ قاف
دَ رندانو په مجلس کښ سر نګون دے
چه دَ يار له جوره او کا اختلاف
هجري سپرد دَ همّت جو لړه په لاس کښ
ورته ساز کړه شنه ګردون دَ غم مصاف

# ق

بیا قیامت نوے نازل شه په مُشتاق
چه قامت یې که بلند په زور دَ ساق
مرمت دَ څنو کا دَ روغوخه دی
بلا ستاسو سرته جوړه شوه عُشّاق
تن داری دَ عشق په لار بے ننګی ده
اے دَ مینے پرورش له سیاله طاق
چه مردانو غوندے مرد په وینانه وی
ګوره توُره یې سیده شه په اعناق
په ځیر ځیر دِ لاره ګورم لیدے نشے
جوړه چشم م مانده شو په رواق
تورو زلفو دِ بازار دَ مښکو مات کړ
زیبا مخ دِ جونه پس کړ دَ ایماق
سرومال په یو نظر دَ سری لُوټ کا
دواړه ستر کے دِ خصلت کا دَ فراق

له دیواره دِ سر پورته که غلغل شه
ماوے غوامند بنو بوته دَ بولاق
هجری چا په ملک دَوصل وطن خوښ که
چه هجران یے آتش نکړ په وثاق

---

لکه زه یم ستا دیدن وته مشتاق
شاید نه په وی مشتاق هسے عشاق
څو دَ عشق جیش دِ کوز زما په زړه وی
دم په دم یے افزونی کا طمطراق
داجنون دَ محبت چه ما ته پیښ دے
کښلے نه دے دَ هیڅ دور په اوراق
لکه ستا سترگے یے کا په خسته زړونو
هسے تاخت نه کا په چا یا ذا قزاق
سره یاقوت دِ ځیگر اوسول دَ تریو
اوس یے سیزی دَ بلاق په اور بلاق
هغه کس دِ ستا دَ عشق په کوخه نه ځی
چه ورنه کا نورو مینو ته طلاق

له شرفه به یے سر تر فلک تیر شی
که منزل کړے دَ هجری دواړه رواق

---

که نزول دِ په زړه وه که دَ مولا عشق
پس شا به کړے غافله دَ دُنیا عشق
ستا په زړه به هغه حُب کله قرار کا
تا چه غوره لکه مچ که دَ حلوا عشق
محبت هغه بهتر چه وفادار وی
په خاطر دِ عبث نهال که دا فنا عشق
همه او مړل نهایت یئے نام ژندۀ دے
په حیات چه کړے چادے په رښتیا عشق
اوس هغه واړه اُوده دی په لحد کښ
چه یئے ښ خبرے کیږی دَ والا عشق
نور همه مینے باطلے دی په دور
دَ مولا کښه بیشکه باوفا عشق

په زړه مکړه اے هجرَی بے وفا مینه
په بیتی یئے تخم توئے کړه دَ صفا عشق

---

هومره نه وَه دَ وامق او دعذرا عشق
څو نامی شه په دُنیا کښ زما ستا عشق
دَ لیلےٰ تخم چه یئے اولیدلۀ په سترګو
نو ریئے قیس بیچاره کړ دَ مبتلا عشق
دَ دمن محبت نل بے اوره وریت که
سعد لا زیر و زبر کړ دَ اسما عشق

دَ شیرین دَ مینې تیر په فرهاد لګ وه
جلال هم خاکِ سیاه کړ دَ بوبا عشق

مایې مینه په حضور لید لې نه وه
ولې ارزوم په یوسف دَ زلیخا عشق

خوار قطب ته دَ نازو مینه آتش وه
دَ درخو سره آدم که بې ریا عشق

ورقه په څهره زیړ لکه نارنج وه
چه په سریې سایه اوکړ دَ ګلشا عشق

نور هم دیر موت اسیر کړل په لحد کښ
ولې نام یې تل ژوندۍ که په دُنیا عشق

دا به واړه راته غوږ نیسی په کوټو
په کورونو که یې پیر اوکا زما عشق

دَ عشق راز به څو نهال لری خټکه!
ټوم میږ چه په عالم نه که رسوا عشق

مرتبه چه ستا دَ عشق مشاهده شوه
هجری نه په وی دَ چا هسې شیدا عشق

---

هغه دم چه هویدا که کردګار عشق
په نصیب یې که زما ستا دَ عذار عشق

که باران دَ تورو اوری باور مکړه
چه له دله م خروج وکا دَ یار عشق

لکه زه چه ستا دَ مخ په زیب مینَ شوم
بلبل هم لری په زړه کښ دګلزار عشق

بلبل ګوره سرقربان کا پایئ نه کا
زما سرځو په منت که تر تا ځار عشق

دریغه ګُل هم سر طلب کړی له بُلبُله
خود به خدقوته ظاهرشی دَ هزار عشق

ایمان نه راوړم په کفر ستا دَ زُلفو
چه یئ تار زما په غاړه که زنّار عشق

ماچه ستا دَ مخ بهار مشاهده کړ
هغه دم یم زړه رُخصت کړ دَ بهار عشق

لیده نشی هسے زړه په زمانه کښ
چه زخمی نه که په سر ستا دَ رفتار عشق

یا ما زده او یا هغه چه را خبر دے
څو لرمه په خاطر ستا دَ ګُفتار عشق

که بستر ئے همه صوف وی خوب یئ نشی
چه یئ بل دَ دل په سر کا دودونار عشق

هجری هله دَ جهان رونق پیدا شه
چه یئ ګرم که قضا په دا بازار عشق

---

# ک

چه خوږ عُمرئې زما په نامه برباد ک
هغه تخ را ته خاطر په دکن یاد ک
نیمې شپې م هسې ژغ وکه له درده
چه اُوده خلق م وینښ هغه فریاد ک
هزار لارې م ژړا کړې په تخ روغې
په دا فن م تن مجنون غوندې اُستاد ک
څوېږه زړه په غم دَ هجر پائمال کړم
فلک کله هومره جور په فرهاد ک
چه لښکر دَ هجر نه دې لاماته کړې
زړه م ګوره چه قضا لکه فولاد ک
دَ یار نوم په م په څه وظیفه نه وی
چه عشق دا سبق زما دَ زړه مُراد ک
دَ وصال تخ به لا کله را پیدا کا
په اُمید م همه عُمر بې سواد ک
تر ساعت مخوا څوک نه رسی مطلب ته
دَ هر کار یې مقرر وخت و میعاد ک

هجری خشکل ژړانه کاندِ واعظه
چه له یاره نصیب لرے په هیوادک

دا والا دِ له درګاهه ولے دورک
دَحاسد دل دِ له کلو لا مسرورک
هم دَ دهر والا واړه اوس هموم کا
ما هه امل دِ دَ دل کله دا امورک
کُله مهر دِ دِ ماله دله ورک وَه
دا واله دَ اور دِ مهر لکه طورک
لا هاله الم واله کرم دَ ماه مِهر
ماه رِدا له مهره دور دل م درهورک
صد ولک واره واه واه توم دلدار
اوس دِ مهر له ما که حاسد مرورک
مکره مکره له حاسده و داد مکره
دِ ما دل دِ لکه اور هسے محرورک

دَطر ومس دِ والا اکرم کر وکړم
ما هه هاله دِ کُل ملک لره صد ورک

رازِ هله هویدا دَ عشق مذکور که
چهِ خوښ دَ لرګی سر لکه منصور که
هان مژده دَ دار په سر روغه وکړیه
بل منصور یې دَ ده رنګ لره حضور که
نهفته راز چه مِ واکه خوبه ورشم
په داجرم منصور سر دَ لرګی سور که
ژبه هله پوشیده ذکر پیدا کا
چه دَ عشق سپاه دَ واره جیش مقهور که
دَ زړه ذیل یې دَ غم له دسته اوخوت
دَ قضا کارکن په هسې شی مسرور که
خرم شاه دَ قناعت په ستړګو ولید
دَ آز ګرګ تهِ مِ تجویز دَ سګ ساجور که
دَ عشق جیش چه قائم دَ زړه په سر شه
دَ غضب په تیغ یې غوڅ سر دَ شعور که
په کوڅه دَ لا یعقلو حکه یون کړم
چه یې سر زما دَ هوش له تنه دور که
هیڅ پروا یې دَ ګردش له رنځه نه کا
لویې همت خټک په څرخ هسې منصور که

فلک تل پس له ترینو دَ خوږو داد کا
نن یې روغ پیما هجری لوی دستور که

په جبین دِ تیرو بیر دَ غم اوربل لکَ
دَ زینت لمبے یے هرچرے اُور بل لکَ
مِهرو ماه زهره مریخ مشتری واړه
په کنهه کښ دِ موجود تیر دِ هیکل لکَ
دَ مخ دُر دِ همه زیب پخپل مکان کا
تر مخ پاسه دِ سیس پُول لکه زحل لکَ
که په لُوټ دَ وارو زړو دنو خبر نه یے
سور یاقوت دِ له موتیو ولے مل لکَ
دَ خوبی په ملک هاله شوے مشهوره
چه مِ نوم په عاشقی خلقو مثل لکَ
دَ ربنتینو له قطاره دِ خارج شم
که هیڅ شے مِ دَ جهان تر تا اول لکَ
ستا بدل لکه ځان نشته بے بدل یے
عزیز ځان کله هیچا په څه بدل لکَ
نهایت ارمان به ستا دَ وصال یوسم
که تر مخ دِ مخ پخوا بنکاره اجل لکَ
عشق یه کله ستا زماله زړه بدر شی
چه خمیر مِ دَ طینت خدائے په ازل لکَ
په دربار دِ ستا هغه ربنتینے کرځی
چه تر شائے سرو مال ملک وزلل لکَ
خوے یے ولے له لبانو مخالف شه
هغه خوږ ذاتی عسل وایه حنظل لکَ

نرګس تل کبر کاوه په زیب دَ چشمو
ښه چه نوې دَ بنو په ناوک تل ک
خوب به څه بے یاره کړم چه هجر وغم یې
په کتمل لما سره ځان یې کتمل ک

په دیدن یې اوّلا تر هغه بنیاد کړه
چه زاغ اوشي ختک مړک له یاره بیل ک

سوسنی څادر په سر قمیص دِ سور ک
پرے دِ جوړ د زرکشي ګل و تبور ک
بل مطلب دِ په زړه نه دے درپوهیږم
زما سوځولره دِ روغ دَ غم تنور ک
تورو چشمو دِ بیا نوے فتنه اوکړه
په نګاه یې دَ زړه ملک همه فتور ک
دَ مخ خال دِ یزید زه بل حُسین یم
هر نفس یې پما راز لکه عاشور ک
په پلو به نوُر دَ مخ نهفته نکړے
مهر کله په پرونی چا مستور ک
تورو زُلفو دِ داخل کړم په څوکیانو
هغه یار چه په دولت یې تل غرور ک

لرے مشه دو شاله ستاله عُذارو
زما تن یې اور سکاره لکه دَ طُور ک

دَ بناسُت ژغ مِ له اصله وه ختکه

لا دِ نظم په ساری جهان مشهور ک

لکه ته مِ شمار دَ حُسن کړے په نظم

قیس کله هسے حال دَ یار مذکور ک

که هر څو په آئینه کښ مخ خپل گورم

حال یۓ تا په نظم بنه را ته ظهور ک

چه دائم یۓ زما منعه کړه لستانه

په غضب مِ سک غماز له دره دور ک

ډیر صفت چه مِ تل تل کوے له مخه

واخله مخ مِ په صله در ته حضور ک

ستا خاطر به نور په هیڅ منور نشی

په انعام مِ دَ بوسے ځکه مسرور ک

هجری ډیر دی شاعران په زمانه کښ

ما خو ستا شعر په واړو کښ منظور ک

---

مُعرّا دِ له ردا همال دَ هور ک

کوه وسم دِ هور همه دسک داور ک

سر دِ ماله سُها هسک حاسدۀ کوره

ماه مورد له همه دیکه دِ ما کور ک

دِ مادل دِ اوس واله که دوۀ اهُوو

ور لره دِ مس معد دَ طرّو دور ک

وه وه لعل و دُرخه کُم که دلاله وه
کلالو دِ کم زما دَ عُمر سور ک
وسمه لا دَ ماه دوه مدهٔ مُطرّا کا
له ماکم دَ ماه هلالو دَ مرک ورورک
هاها هم لره سماله مه سوا کړم
مردمک دِ دما ړک د هوله اورک

دال اول له ماهه دور دَ دهر دود که
هاله سم ورلره هم دِ همه لورک

# ل

هغه تللی یاران نه راغله لا رغه شول
په کاته مِ پسے سترګی دره لیمه شول
نام نشان یئے دَ هستئ په دوران نشته
ګویا کانی دَ نمک ووچه او به شول
څو به سیر دَ باغ کړے ګوروته ګوره
چه په نس کښ یئے خوبان دَ انسان خړ شول
هغه سترګے ګور همه دَ ځان په دود کړے
چه زلمی به یئے بیخوده په کاته شول
رُخسارو به یئے رنګ او باخبنه وکړله
په بستر دَ زمکے خشکله سپیره شول
چاچه خوب په پالنګ نه که بے اطلسو
دَ لحد په خاورو ګوره چه اوده شول
چه پروت یئے په هر لور نورو مورچل کړ
په صورت یئے نن دَ ګور چمچی مار شول
دیرو نوئے فکرونه کړل په ډاډ دَ عمر
بے رخصته یئے کوچ او که چه په تله شول

هغه تیر چه یې عمرونه تر زر تیر شول
نهایت له دُنیا لاړه چه زاړه شول
دَ فلک قند چه خوړل تیر و غمتا نو
دَ کوم دور دَ غم نوش یا په چاړه شول
تر هغه یې دیر حرص دَ مال لاړ نشه
څو هډ و نه یې دَ تن په باد خواره شول

هجری ته په خپل هوس پخپل ژوند ون کړے
چه یاران دِ په دا زمکه کښ وراسته شول

---

دَ بهار په موسم بزده په اوربل گُل تل
هرگز نه وی زیب دَ گلو په اوربل تل
په اوربل په زلفو هله ته نازیږه
که پوهیږے چه به وی په دُنیا جل تل
دا بهار قائم په هیچا دا نم نه وی
په فلیلو یې لره دواړه کا کل تل
لوے دولت کښه باده په خیزد گُلو
موجود کله په دُنیا وی گُل و مل تل
په هر چا چه لبنگر کوز دَ محبت شی
له غمو نو یې صورت وی په زلزل تل
دَ عشق غم دِ دیر عالم ته و بالا کا
خو دِ ته یې بنا لسته په دور تل تل

که دوران له یاره نه وے جُدا کړے
هجرَی تا به وې میش دَختبَد دل تل
عالم نوره دُعا کا زه هسے وایم
چه دَ مخ حریف دِ مه وه هرګز بل تل
بے وصاله دِ خوبِ خشکل کرم دلبرے
چه هجران را پسے کړے وی مغل تل
دَ زینت زکواة دیدن دے راکوه یے
زیاتی نه په لهره ورځ کښ خله شل تل

که بلایے په بدلے لتا جاروځی
دَ هجرَی غوند دے دِځار شه زر وسل تل

---

نه په باغ کښ وی موجو نه دَ ګلزار تل
نه دَ راغ په مخ باقی وی ګل بهار تل
نه تور چتر په جبین وی تل دَ جونو
نه یے مارو ته ما رونه وی تیار تل
نه یے مخ په مد دَ وروځو تل زینت کا
نه دَ حُسن بازار جوړ وی په عُذار تل
نه زمان دَ بِنا دی تل په چا قایم وی
نه دولت لری په چا باندے قرار تل
نه دائم دَ شباب وار چا ته موجود وی
نه دَچا شو نه یے په شوند وی دَیار تل

غنیمت گڼه دا وار په عیش مت کړه
فلک نه پیرزوکوی دَعیش وار تل
څو دا شنه څرخه په زمکه دورکاندِ
په آرزو یې هیڅوک نکړه برخوردار تل
په بقا دحُسن دومره دماغ مکړه
دَ ښنا لُست په سمند څوک نه وی سوار تل
تل به ستا په مخ ښنا لُست کله دېره وی
چه به وی زما په زړه دَ عشق فکار تل
له ښادی نه سره غم هسې جوړه گرځی
لکه گُل سره چه مل وی تیره خار تل

نه به تل هجرؔی دَ عشق له غمه ژاړی
نه به یار په ملک دَ زیب وی شهریار تل

---

که خزان کړ پرون دور دَ گُلزار بل
له نیسانه زمکې او زُو گُل بهار بل
په رنگ رنگ دَ زمکې مخ نسیم نگار که
هم یې شین خلعت په تن که دَ کهسار بل
دَ کُهنه ختو وار تیر نن مُهیّا کړه
یزدی بل یکتهی بله هم دستار بل
په ښنا لُست مغروره مه اوسه بې غمه
البته به دورپیښ کا صبا وار بل

نن ایام دَ گل ومل همیش آغوندہ
بل زیور بله جوړه دَ دُروهار بل
دَ مدت زخمونه نن په زړو زاره شول
نومے داغ په هرچا کیږده هم نګار بل
ستا دَ زلفو غم خوړلے نه رغیږی
تر دا سم نه لری ډیر په جهان مار بل
په یو تار به یے فګار دَ زړه درزنه شی
مستے ورکړه وعاشق دَ زلفو تار بل

هجری نن تماشه ګوره چه فرصت دے
زمانه به درته پیښ کا صبا کار بل

---

په دُنیا به تر تا نه وی جفا کار بل
اوس به یار نیسم په دور وفا دار بل
دَ عشق غم دِ آواره کړم له وطنه
له نا کامه به وطن کړمه دَ یار بل
تا چه پټ دَ یاری پرے کړو عیب ګڼنه
اوس که اونیسی بنده په غوره یار بل
ما دَ ګل دَ خنګه ډیر اغزی لیدلی
تر رقیب به هرګز نه وی تیره خار بل
دَ ځوانئ بهار په هیچا قائم نه وی
دَ هر فصل ګلزار بل وی نوبهار بل

غنیمت گڼه دا وار صبا به نه وی
ذر به زر کانډِ دوران دَ عُمر دا ربل
هره ورځ په هره شېبه په هر ساعت کښ
په دُنیا سپهر کار کا نهودار بل
خپل ښائست سره کومک لره دلبره
گڼه رنګین کله زری کله سنګار بل
څو اشعار په پښتو ژبه چا بیان کړل
تر ما بهه دهر او نه زۀ په گفتار بل
دیر محال دے چه شاعروی په پښتو کښ
ما ختک غونډِ پیدا کا ندی ادوار بل
که مې سیال دَ شعر څوک په دور غواړی
بیهوده تر هغه مه گڼه بسیار بل

گُل و مُل ځوانی چه چا ته میسّر شی!
هجرؔی نه وی ښه تر دا په دور کار بل

---

نه به ستا په مخ قائم وی دا جمال تل
نه به مینه زما وی په دا کمال تل
هر دولت چه زمانے چا ته عطا کړ
روزی نه شو دَ هیچا هغه اقبال تل
دَ گردون له نیرنګی بے غمه مشه
په چا کله یک همان وی ماه و سال تل

نه به عشق زمادائم زمانه پریږدی
نه به ستاپه مخ جلوه کا زُلف وخال تل
بلبل څکه تل په خار دَ هجر خوږ وی
چه موجود نه وی هرګز دَګل وصال تل
زمانه یه دِ دَجور جواب درکا
څو به ستړګے ستا کوی له ما قتال تل
دَعشق راز به دِ ظاهر په حیات نکړم
دانا نه وائی وچا ته دَ زړه حال تل
وس به دا غزل تمام په دا دُعا کړم
هر دولت اګرچه نه وی لازوال تل
دَ بنو ترکنی دِ تل په ستړګو جوړ وه!
چه سینه م دِ په غشو وی غربال تل

دَ هجری زړه دِ همیش پکښی محبوس وی
خو په مخ دِ وی باقی دَ زُلفو جال تل

---

ما پیشکش کړو درته واړه سر و مال خپل
له نقابه تا ښکاره نکړو جمال خپل
ستا دَ مخ انوار غماز مدت یے خبر کړ
نه که هرڅو پټوے دَ زیب اقبال خپل
یوځل لار له مهره را پخپل خلوت کښی؛
چه ظاهر کړم په وحدت کښی دَ زړه حال خپل

په خواره جال صیّاد نه نیسی مرغونه
خمیده لره په مخ دَ زړونو جال خپل

دَ ناهید په طالع او زووے له موره
څکه تا کړ په دُنیا دَ زیب کمال خپل

ستا باورکه دَ بناره په وینا نشته
په توریت کا مُشخّص درود وکال خپل

ستا باڼه وُروځے کمے په وژلونه کا
له مدده یے نګاه لرے شین خال خپل

سپاناسے تل لوګے کوه دَ مخ په لوری
که له بدو ستر ګو نه غوارے زوال خپل

ډیر دِ وریت کړ خوار هجری په اور دَ هجر
اوس یے او نما څه دلبره په وصال خپل

---

چه مِ اولیده دلبرے ستا جمال
آفتاب نه لری دا شان زیبا جمال

دا اسباب دَ زیب په مخ دَ مهر نشته
څو لری سامان دَ زیب دَ شا جمال

دَ خجلت خولے به او زغلی په اوږمی
که یو ځل کاله بُرقے پیدا جمال

خال وخط زُلفے یے صید کا دَ زړونو
شو ښه غایب یے لالوی والاجمال

تورے ورُوځے یے لینده بانه یے غشی
زړونه وُلی هغه ډیر صفا جمال

په بنه مخ یے هم دغه پوزه جوړیږی
زیب دَ سترګو دغه روح په دا جمال

ترڅے مخ لاندِ هم دا قد مناسب وه
غاړه نه لری دا شان دَ چا جمال

په بینائست که کبر کړے بے حَایه نه دے
چه درکړے هومره ډیر مولا جمال

هجری مخ مِ هرګز چا لیدلے نه دے
تار سوا کړ په دوران زما جمال

---

که پکار زما دَ یار وی دَ دُنیا مال
سراسر دِ همه خپل کنی زما مال

سر مِ ورکړ هغه ورځ چه پرمیَن شوم
چه تر سر خو عزیز نه دے دا فنا مال

مابه واړه مال په تار دَ زُلفو ورکړ
ولے نه ارزی په موے بیوفا مال

که جواب یے څوک دَ مهرپیما راوړی
په مژده به هغه کس نه کړم عطا مال

دَ وصال زمان هم هسے جور کاندی
لکه کاندی خلائق سره جفا مال

په کوشه دِ دَعشق یون هغه سړے کا
چه سر کیږدی په ورغوی کا ترشامال

زه هجری یمے دَ دیدن بها په څه کړم
هرګز نه لری دا قدر و دا بها مال

که دِ تل په در ولاړ وی جلّادان سل
همیشه په تورو وژنی عاشقان سل
ګزنده سګان دِ ډیر په دربراته دی
مقررکړه په دا سپیو نور سګان سل
عزیزان دِ تر دا تیر حسد پیدا کا
په رشوت دَ تن مدد کا ندِ قاضیان سل
دربانان دِ هیڅ صرفه په وهل نه کا
په کومک یمے مقرر کړه مست فیلان سل
که درځنه بدخواه لرِ دی دَعشاقو
نور جفا لره پیدا کړه رقیبان سل
کور وکلی ځوی ئے منعه همیشه کا
نه هم وعظ ته پسے کړه واعظان سل
نوکران دِ خود له خیر هم ستمګر دی
زد و بُرد لره یمے مله کړه غلامان سل
که په دا همه دِ واوری له دربارِه
هر عاشق ته زور ل اوکړه په زبان سل

کہ هجری تر تا فدا په څه حساب دے
تر بدن دِ یاره ځار شه خسروان سل

پرون هر غم و سنادی چه پما تیر شول
یاد یےنن څه فائده نه کا همه تیر شول
په جهان هغو کارونو چه جلوه کړه
دَ گردون له کشمکشه په بل پیر شول
دے دوران په باغ چه اوزوول گلونه
واړه غوځ دَ آفتونو په شمشیر شول
دپوزیبا زلمی چه مالیده په سترګو
همه وینم دَ سپیرو خاورو په خیر شول
دَ وصال په میو مست بیخمه ناست وُم
دَ هجران سواره ترما همه چاپیر شول
هسے زیر نزار غمونو دَ فرقت کړم
په سینه کښ مِ گویا ویښته دَ شیر شول
دَ راحت په ملک یےځوک په قرار پرینښو
څوپیدا په دا سپهر ماه نمیر شول
هر بشر چه دَ زمان خواږه په خوله کړل
نهایت هغه خواږه ورته کنډیر شول

هجری ستا له خدا څه دی همیش زاړه
چه دَ تخت صاحبان لاړه په پنجه یر شول

# م

همیشه دَ یار په غم پسے رنځور یم
دَ هجران په اور یے تود لکه تنور یم
تش صورت مے تقدیر بند که په دکن کښ
تل دَ زړه په یاد و یار و ته حضور یم
زه په هومره ژبه ژاړم له هجرانه
چه امام دَ نائے وچنګ و دَ تنبور یم
عشق هزار خفته بلا کړے راخبر ے
صد رحمت مے په همت چه لا مسرور یم
زخمی زړه لره مرهم دَ وصال بویه
جُدا یمه غوښ کړے پروت په بیجا پور یم
دَ وصال په اُمید هر ساعت تازه شم
که هر څو له یاره لرے په ضرور یم

نیک و بد مے دَ تهمت په کانو وولی
زه هجری دَ او سنی دور منصور یم

چه ژړا م خلق نه آروی زه څه کړم
راته وایه علاج څه چه صبر نکړم
دا یې صبر شیرینی بخښی که ترېخ وی
زه خو صبر پائمال په ډیر کاته کړم
دوران تل دَ صابرانو میوه ورکا
خو یې دود بدل ځکه مانه کړم
یا دَ صبر ماند وبود په جهان نور شه
لا دا خوئے دَ صبر نه دے چه یې زه کړم
شاید صبر نهایت میوه پیدا کا
شکایت یې بے موجبه دَ الارغه کړم
نور به ما باران دَ وصل تازه نه کا
چه دَ هجر لښکر مات لکه وابنه کړم
څوک دَ هجر ځائے را وښایه یارانو
چه یې کور لا هو دَ ستر کو په اوبه کړم
شب وروز م کسی هسے کوهر نولی
کویا زه دَ هجر غم دَ حوت اووره کړم
چه په زړه م اُور دَ یار جُدائی کېږی
ولیدو نه یې دَ قصدهٔ ځان اوده کړم
هسے نه دَ هجر غم چه حلق پرِ خوږ شی
که په خوله دَ زمانے همه خوارزه کړم
دَ یار دید به حاصل نشی بے نصیبه
که په ډیر طلب مسین پېزار زاره کړم

ما هجري په انتظار کښې عمر تیر کړ
ترو به کله لا دَ یار سره لیده کړم

هغه دم چه دَ هجران له دوکه آه کړم
په ورځ نور دَ مهر ورک په شپه دَ ماه کړم
لا ړ به نشي لما غم دَ تورو زلفو
که په آه یې تن تر زلفو لا سیاه کړم
د افغان و آه چه زه کړم عجب نه دے
که ترتلو پوشیده دَ فلک راه کړم
زه چه آه تر په فلک کوم پوهیږي
دایم نه چه یې په دود دود تباه کړم
تل دَ هجر له غمونو په جنګ ریز یم
دَ رضا زغره پڅان صبر سپاه کړم
دَ یار عشق یې په یوه نفس تاراج کا
که همه په صبر ډک دَ زړه خزګاه کړم
په کوځه دَ عشق خرام کله آسان دے
زه چه ځم په هغه لار سینه ګیاه کړم
ضیغم کله په جرأت لما تیرے کا
ولے زړه صنم ته خس لکه روباه کړم

زه هجري چه یې دائم هجر ته کورم
په دا جرم به زړه بنا په زنخ چاه کړم

چه دَ زړه له دسته وادَ فکر باز کړم
په منګلو کښ یې بند دَ معنو قاز کړم
نوے نوے مضمون را کاندی له غیبه
ځکه هره مره په ځلا دَ فکر ناز کړم
یاد به ځان سلامت یونه سی که راشی
په خلوت چه زه دَ یاره سره راز کړم
هر دلبر چه یې تعریف دَ حُسن کړمه
دَ جهان تر ښائسته وُ یې ممتاز کړم
کوم شاعر به هسے آب دَ شعر وری
لکه زه یې آرائش دَ وزن ساز کړم
دَ معنو اسرار که هر څو سربسته دے
زر یې زر یې په تدبیر دَ عقل باز کړم

دَ قبول ګوتے به پوے په لیمه کیږدی
که هجری په دا هنر والی اعجاز کړم

---

یو دَ عشق په کار صادق لکه وامق یم
بل جدا شوم له هغه چه یې عاشق یم
بهم دَ شاه له ډیره عدله مدت اوشه
بیګناه هم بندیوان لکه سارق یم
عشق او هجر دوه بلا سویم اورنګ شه
څهارم یاد دَ وطن زه یې کا هسے لیم

یو بلا په چا نازله له دیو مه شه
زه تقدیر پرے اخته کړے وَ خالق یم
هر شاعر په قدرحال سپهر مروړی
ما ته قهر ځکه ډیر کا چه فائق یم
سخنور دَ جهان زه نادان په څه کا
غم به ما لره راځی چه یئ لائق یم

زه هجری په پریشانی ځکه نازیږم
چه په دا دَ یار له زُلفو موافق یم

---

نن په مخ دَ زمکے زه لوئے گنهګار یم
همیشه تر خپلو بدو شرمسار یم
دَ نیکی عمل مے نشته شرمنده یم
په دوه داره دِ له فضله طمعدار یم
زه خطا کوم همیش ته نیکوئی کړے
بارے شُکر چه په خپل جُرم اقرار یم
ستا کرم به البت بنه راسره اوکا
زه که هر څو په عالم کښ بدکردار یم
دا بهښت مے خپل وطن رائے عطا کړه
طمعدار دِ زه له فضله دَ دیدار یم
دَ بهښت نعمت مے خپل که یئ مولا کا
چه خادم دَ پاک نبیؐ غونډ سالار یم

قضا کیښووم امانت په دا قفس کښ
زه طائرِ دَ لامکان دَ مرغزار یم
دا خاکی قفس زما بندیخانه شه
ګنه زه دَ فرښتو سره په شمار یم
منتظر یې دَ فرمان کاندِ بحرمه
نن میلمه دَ زحمتونو په دیار یم
نیکان دراځ په ښه عمل لری یاربه!
زه مجرم دَ خطا کارو په قطار یم

له عطادِ ډیر امُید لرم غفوره!
زه هجرؔی ځکه دائِم په استغفار یم

---

یاره ستا په نظر سپک تر یوه ککَ یم
دَ اخلاص په تله ډیر ترمنه لک یم
دَ ښائست پوله دِ چرته ده حیران یم
نه یې حد یقین موندلے نه پرِ شک یم
چه همیش مِ ستا دَ فخ مدحه سبق ده
که له مینے دِ مجنوؔن وے زیرک یم
صد هزار ستمه کړه زه به یې ورمه
له جورونو که دِ اوژاړم کودک یم
یو زمان مِ له کشاله امان نشته
لاس دَ عشق لکه چوګان زه یې ټپک یم

مستانه مینه مې چشم دَ رندانو
دَ رقیب په سترګو زه خار دمردک یم
سره هجری مې دَ آه په لوګی یا ځی
له فرقته ستو د تنور دَ اوره ډک یم
دَ هجران لښکروزورا بانه اوکه
منتظر ستا دَ رُخسارو په کومک یم
فرصت سل رنګه وصال له مابعید کړ
نن دَ وصل عید قریب یا تو په تک یم
ما ختک ته صفا خوله په صلا راکړه
ستا دَ حُسن په تعریف له زړو یک یم
دا نایان دِ روک دَ شعرپما کوری
نیک و بد به یې روشن کاندِ محک یم

په پښتو ژبه مې سیال دَ شعر نشته
دَ معنو په جهان شاه اشرف ختک یم

ځو دَ یار دَ مستو سترګو نه جُدا یم
لاهو کړے دَ حیرت خونی دریا یم
دَ ځیګر وینے م اوخوړے غمونو
مرګه جګی جګی راشه اوس رضا یم
که زما په خون مین یے نن دِ وار دے
دَ یار غم م صبا وژلی دَ رنه وا یم
دَ کفن حاجت یے نشته شهیدان دی
چه په تیغ دَ هجر مړه دی زه یے ګوا یم
په هغو دَ هجران څه چه یار یے نه وی
زه یے څګه په اور اوسوم چه اشنا یم
دَ وصال خوښی لا تنده تر صبا وه
له فراقه یے خسته په سالها یم
دَ هیچا زړه یے تر وزن لاندِ مه شه
چه م یار دَ هجر اولید په دُعا یم
هر طرف چه نظر کیږی غم لیده شی
ځو دا پورے په ندی دَ نزبدا یم
یا دکن دَ غم وطن بنا دی یے نشته
لا پما غمونو شپه کړه مبتلا یم
هر نفس پما عاشور که یزید اتو
ګویا زه حُسین دَ وخت په کربلا یم
دَ زړه سرم سکه زد په یوه نام دے
که بُتان دَ جهان هجر زه ورته شا یم

زه په مینه دَ اور تر ګټ نه یم چه به خلاص شم پښه دی ګرځی شوم هم کار نیږی کاکا یم

په ګُفته مِ دَ لباس مظنه مه کړه
په ګېږ و زلفو سوګند که په دَغا یم

دم په دم مِ دَجان نوم په ژبه ګرځی
زه هجرؔی له بله ذکره مُبرّا یم

---

ته له حاله خبر نه یې هجر دِ زور کړم
په ستم یې دَ ځیګر په وینو موړ کړم
دَ ژوندون زراعت اورسیده ریژی
مزعفر سموم دَ یادو لکه بور کړم
تر هر رنځ هجر بتر همه دروغ دی!
که الم یې دَ ستم نسبت په کوړ کړم
دَ وصال سبزه په سترګو لیده نشی
دَ فرقت غمونو سر په هسې دوړ کړم
په دهره دَ فراق دوه دَ قوّت ملا شوه
پرحیّه غونډِ پخا مے له غمه مرور کړم
صیقلی دَ ګردون هسې مالش راکړ
چه یې لا تر آئینے منوّر جوړ کړم

دَ زړه سرمِ سکه زد ستا په نامه شه
زه هجرؔی دَ محبت له هرڅه سور کړم

---

دَ گردون له کږو کله په دا غم یم
دَ صنم له هجره سم دَغم په یم یم
ظاهری بدن مې دور دَ زړه په یادو
دم په دم سم دَ صنم سره همدم یم
آه فغان مې ځکه تل دَ ژبې مله وی
چه همدم دَهم وغم یار دَ الم یم
مرتبه مې دَعشق یارته برهنه ده
په دا فن تر آدم همقدم قدم یم
دَ یار وصل مې په خوب برایه اولیده
ماوسم په دا نغم سهم دَجم یم
څه به بله تمنا کړم بې وصاله
چه خدم دَ متاع نه نه دَ درم یم
زه هجرؔی دَ بیلتانه له ډیره غمه
دَ زړه سر په اره تم لکه قلم یم

# ن

ماچه وه لیده دلبرے جبین ستا سپین
په دا شان به هرګز نه وی مخ دچا سپین
دَ لبانو رنګ دِ رنګ دَ لاله هیڅ کړ
شان دَ ګوتو هم لرے ترجبین لاسپین
ستا دَ مخ عشق به واعظ پما حلال کا
که دِ اوویني سرے شونه مجبین دا سپین
نمر په دا بنا لُست دَ مخ کینه پیدا کا
دَ صورت نور چه دِ ویني په غبرا سپین
دَ کمال په شپه یئے مخ په لوری سم کړه
چه نور فخر په نُور نه کاندِ بدرا سپین
لکه ستا دُر وګوهر دَ زیور بریښی
ستوری نه کا نمود لسے په سما سپین
ستا په مخ که یئے څوک یو څل برا بر کا
په زمان به دِ کا فورا وکا ترشا سپین

هسې کبر به نور توره په برېښ نه کا
ترپلوکه هویدا که مرونه شا سپین
چه یې نور د مخ سیالی کا ستا له مخه
هسې مخ په جهان مشه بل پیدا سپین

په وصال م دَ بنه مخ سترګې بینا کړه
ما هجري کړه کسي دواړه په ژړا سپین

خولیده شی په ظاهر رنګ دَ فلک شین
له جفا یې هومره زړه لری ختک شین
څوم زړه دَ ده غمونو همه شین که
شاید نه به کا هیڅ رنګ هسې پتګ شین
دَ ځیګر سُرخی م هجر هسې شنه کړه
چه آرزو یې دَ سبزی لری سبزک شین
راشه څه خوم دَ زړه ننداره اوکړه
هرګز نه کانډ فګار هسې توپک شین
ترفلک به یې دبدب دَ حُسن تیروه
که یو پړ په دا روش وې دَ بُویک شین
څو ځیګر زما زرغون دَ هجر غم کړ
په دُنیا به ځیګر نه وی هسې یک شین

چه همیش دَ هجري بد وایي و یار ته
دَ غماز په سر نازل شه لوئ کوتک شین

زړونه غواړه البته دَ عاشقانُ
یا عاشق ربه څوک مکړے دَ بُتانُ
که دَ دے جهان دلبرے ورته پریږدے
لاس به اوکاږی ډیر سوی له حُورانُ
څوخوبان یےُ چه رسته دی په مجلس کښ
حاشیه یےُ لازیبا کا تر کُلانُ!
ډمان وے دم بخود مکرکا نه شول
په هر کُنج دَ ریاض اووے بلبلانُ
دَ گلونو بهار جوړ باده تیاره
نن قرار کله روا دے سرودیانُ
په هوس دَ بهار کوندٔ طیر گویا شو
تا سو وے خلوت خوبش که زاهدانُ
تر هغه ساعت به سخت په دنیا نه وی
چه ژغ اوکا جُدائیٔ په دوه وُ یارانُ
لیده نشی چه په خون دِ تُوره سره شی
هجره کړے ناسازے چارے په شیرانُ
بیا به کله ستر گے وا دَ یار په مخ کړم
دَ دیدن وروونه بند کړه رقیبانُ
زه بنده په مسئله کښ درمانده یم
التماس دَ جواب کړم له عالمانُ

چه په داحُسن دِ مخ جونه پیدا کا
بیا یےُ وے تن غزا کا دَ ږِرمانُ

اوس دِ منه په عیش کا په پیری لښی
دَ هجرَی ختټک پیغام دے په ځوانانُ

اولید مشه هرګز ځ دَ ګلرخانُ
دَ کتولی آزار پرے کا په کیګانُ
دَ اسباب خربه مُ اونښلی په ختمه
په کوڅه دَ شوځو مه ګرځه نادانُ
په سمند دَعشق سورلی نه ده اسانه
ملک یې نه وی تش هرګز له مېزکرانُ
تردا سخت عقوبت هم لری بیشکه
ولایت یې مالیدلے دے یارانُ
څوک چه دا عذاب همه په سر اخلی
دغه کوځے دغه میدان هله شیرانُ
لاف دَعشق چه عیب کانه په دروغه
دروغ کله با فروغ وی کاذبانُ
نفس الامر بیت وایم ودانا ته
حق تارینه لری البت په احمقانُ
ن په دا ژبه چه زه هجرَی ویل کړم
ارواح کله پرے آګاه دَ شاعرانُ

لهٔ ریا مُبرّا حال خټک بیان کړ
وړاندې تاسو زده کړئ ابو عاشقانُ

# و

یاره راشه حال دَ تیر دور بیان کړو
په ژړا ژړا رایاد تللی یاران کړو
نن دَ عمر لذت هیڅ راښکاره نشه
حکایت سره بیان دَ تیر زمان کړو
هغه سنه همځولی څه شول نه یې وینم
په ماتم یې تر دیده و جاری باران کړو
مجلسی م مسافر مونږه یې پریښو
زه او ته یې په عذاب اور په دامان کړو
یار وې نور به هغه تیر پیره او نه کا
په ژړا ژړا که تور دَ کسیو وران کړو
تر ژړا بهتره چار مونږ لره دا ده
چه همه خلق ترشا دَ کوچ سامان کړو
چه اُمید نشته دَ تللیو له بازگشته
دَ زړه سود به یې تر کومه په مکان کړو
یاران واره په نوبت راځځنه لاړه
څو به مونږ حیات په دا فانی جهان کړو

## یاره خوږ مصلحت وهجري ورکړ
## نور به زه اوته تر شا خلق ودان کړو

یاره راشه له عالمه تن کنار کړو
په خلوت کښې سره ناست بوسه کنار کړو
په افراط جامونه واخلو دَ شرابو
تورے خاورے په سرورک غم دَ نهار کړو
شین سپهر دغاباز باور پرے مکړه
په دا کار مصلحت هسے چه تلوار کړو
دَ صبا په اُمید ډیر په ارمان لاړه
مونږ به ولے په صبا برات دَ کار کړو
زه او ته چه سره خوښ په مجلس کینو
دَ بد خواه په سر به کاڼی دَ کُهسار کړو
یاره زه او ته یو تن جُدا لئ نشته
په حیات به تل خبرے دَ اسرار کړو
ولے نن دَ بهار گُل په ریاض راغله
تر همه چارو لازم چه یئے دیدار کړو
په چمن دَ گلزار خُور نکه چیغار کا
راشه یو ځل شُنیده زغ دهزار کړو
پس له کاله گُل میلمه شی په ریاض کښ
لا به کله بیا دیدن دَ نو بهار کړو

په موسم دَ بهار نور شُغل حرام دے
زه هجرَی او یار به سیر دَ بهار کړو

---

بیا یې تاو ورکه په قصد دَ زلفو څڼو
دَ رنجو بنا اُست یې هم ورکړلو ستړکو
په کوځه یې دَ عشق هسې خلق تول شه
چه تمیز دَ خوردو نشي له بزرګو
دَ عشق جیش یې نازل زما په زړه شه
صبره تښته چرې تَل ګوره دَ عُمرکو
تورې سترګې یې څه سحر کا حیران یم
چه ګیدړ کا په نظر شیران دَ دړګو
سرباز ان که دَ عشق لاف کوی پرِ سبائ
ستا سوڅه عرض په داد دَ شهر چرګو

یار دائم هجرَی ته مخ پښا به نه شي
که له غمه واړه او مری غماز کرګو

---

ترے فنا چه دَ دین کارکانی دَ ورورستو
په اخلاص کښې دا خصلت ویم دَ سُستو
دَ صبا فکرمُ ولے له زړهٔ دور کړ
اے دَ دین په کار مته دُنیا ته چستو
په عمل دَ نیکو ځ کړه عیب یۓ نشته
که پوشاک مُ همه زروی دَ آغستو
دَ طلب زمان هم دا دے بیا یه نشی
که لینګی مُ دوارهٔ غوځ نه دی دَچستو
پیروی دَ نبیؐ کړه که جنت غواړے
بله لار په جهان مه کښه دَ ورستو
دَ غفلت له خوبه پاځه عُمر تیر شه
په بقا دَ لا بقا چارو بد مستو
مرګ رُخصت دَ فرصت نه کا توښه کانه
اے په مهر دَ فانی دُنیا پابستو
دَ اِسلام دامن هجرؔی په رضا اونیو
لاس یۓ نه دے په دوه دارهٔ دکُستو

---

زهٔ او یار سره چه لرے په ظاهریو
دَ کردون دور داغ کړی په ځیګر یو
په دا حال که همیش شکرکړم روا دے
چه هردم دَ زړهٔ په یاد سره حاضریو

ته زمونږ په هجر خوش مشې رقیبه!
هر نفس مُ سره وصل په خاطر یو
که یو ځل مُ وصال او شي بیل به نشو
په دار کړي هسې شان هجر کافر یو
یاره راشه جُدائي مُ صلاح نه ده
مونږ په دې فاني کاذبه مسافر یو
ګوره کوم زمان به والوزو وطن ته
دَجهان په کښت وارِد لکه طائر یو

هجرؔی هسې وار په وار وکړي لېږدي
لکه راغلې له هغه متواتر یو

---

مقیشي خادر یې واغوست په جالیو
ارګجه یې پاس طلا کړه په چو لیو
تماشې لره رادرومه عاشقانو
هر څوک درد دَعشق اخلي په جولیو
په یاقوت یې همه روه ته وبالا کړه
اوس به ملک دَهند اخلي په لالیو
دَقیامت ساعت نازل په زمانه کا
هغه دم چه یې ژړ نګاشي دَوالیو
سر تر پایه لکه بدر همه نُور ده
هیڅ مکان یې خالي نه دې تر تلیو

ما چه ملا دَ مستے شاه مشاهده کړه
ځان ته مه وایئ ږیره دَ ګل کلیو
که یو ځل یے مخاطب کاځه عجب دی
که ګویا شی تصویرونه دَ قالیو
دَ خړیه ویښته یے کوز دی ترپندیو
لاس په لاس یے پسے وانیه سهیلیو
چه یے حُسن ته نظر په بیه کاته کا
سر یے بړ دیؤ غوندِ مات شه په مولیو

زه هجری یے عیش کړم دَ درپه خاورو
راته مه کانیه ځوک ست دَ نهالیو

---

برا یه عنمان راغلی دَ هجران ؤو
دَ لښکرو حد یے نه ؤه بے پایان ؤو
هیځ صرفه یے دَ تاراج رعایت نکړه
دَ زړه شهر یے خراب که ظالمان ؤو
دَ آه غشی م ویشته په قوس دَ صبر
وے زخم یے پرِ نکړو پت سپاهیان ؤو
ځو م کړے وه خوشی دَ یار په وصل
راتعین دَ هغه عیش په تاوان ؤو
هیځ طرف یے له انبوهه خالی نه وه
هم په زمکه ګرځیدل هم په اسمان ؤو

دَ فانی دُنیا کاروَنه سرسرې دی
شکر شکو چه تل نه خو یو زمان ؤو
زهره کوره په لرزه چه په دیره شی
که مِ سر دَ خوبه پورته کړو روان وو
ځو دوروَنه ختک اولیدل په سترګو
دَ استاد وفایې نکړه ګذران وو

هجرې وارۀ په ارمان له دُنیا لاړه
بادشاهان دَ مملکت چه په جهان وُو

---

زیب یې هسې زړونه غوځ کا دَ سریو
آب له ده کویا آغستی دی مصریو
له دولبویې لذت خبرې واخلی
ځکه سوړکا نرخ په هند کښ دَ مصریو
څه یې هم په تماچه دَ صبا سور شی
دا اُودی که یې تقلید کا دَ غوتیو
ماچه زیب دَ مستې شاه مشاهده کړه
نور دَ حُسن لافې مه کا نهی زانیو
دَ زینت رُتبه یې ختمه په صورت شوه
تش کُونکس دے په دُنیا دَ بنا پیریو
بے دربارہ یې پایاوُ زما غلط دے
حیات کله وی بے سیندہ دَ ماهیو

په خوبه دَحُسن هومره دماغی ده
چه زیورې وارہ مات کړه دَموتیو
زه یې ځکه تل دَ در په خاورو پرویم
چه پرې خوبښ یم دَ اطلسو تر نهالیو

په هجری به غم دا هومره شند مه نکړې
که آوازه کې را تلے دَیار دَ سپیو

---

په تیکه کښې دَ صنم جوړه هیرا وو
لا روشن تر ماه و مهر په ضیا وو
که هیره په دا خوبه وو او بیشکه
ولې مخ ته یې لا سهل تر کیا وو
انګی یې ماله سیبو مُقابل کړل
هغه توکی دَ ململو دا خامتا وو
بیا یې لعل چا و لعلو ته نژدې کړه
دَ هغه قیمت خوشته دا بې بها وو
دَ غاښو نو زیب یې ګُډ په خجالت کړه
هغه دُرچه پاک راغلی له دریا وو
شاعرانو چه یې قد چنار نسبت کړو
سراسر یې دا وئیل واړه خطا وو
هغه اوچ لړګی مِ اولیدل په باغ کښې
مثال کله په بالا دَ مستې شا وو

نه یې زړونه صبر کا نه مُراد مومي
عاشقان همه چه غم لره پیدا وو

دَهجرِي دَعشق نوبت دے نن له یاره
دَاول دور نامي مجنون لیلا وو

وخت دَ نوبهار دے چمن زیب لري په گلو
په مخ دَ بیناسته ؤ زینت بل اوکه سُنبلو
مخ دَ زمکے واړه مخملي شه سرله سره
دلبرو له عشرت ته نظام نوکه دکا کلو
پټ سبب دَعیش یې جام په کف که غمزه ته
لب چه یې بوسه کا په قهقهه شیښے دَ مُلو
قُل یې اشاره باده آخله چه غم قُل کا
غم په غم اخته کړه زُلفے نیسه په منگلو
نن منزل یې باغ تګل دَ تلو لري گلونه
ځا ریې په گتوشه کال به اوکا په راتللو
فرقت له وصله لرے هرگز نه گرځي په دور
تل گلونه نه وي پرِ غوغا کا نه د بلبلو
که تل په حدیقه وي له بلبلو به گُل وَلے
لار مے لارمے خیر مے لمن گرځي تل تر تلو
ارمان دَعاشقانو په وصال دَنظر لشي
هر ځینبته بینا کا وینه مخ ته په کتلو

ستر کے دَ مینو چه منظور ے په دیدن شی
کم هغه یا نه شه چه جرأت کا په ځنبلو
ژغ دَ جرس کیږی چه‌پیدا دے بے خبره
مت په رخصت بویه مکانه دَ تغافلو

ندم په تیرو چارو شرنه لری ختکه!
دم چه گذشته شی پیره نه کا په ژړلو

چه لذت م هویدا شه دَ خبرو
شکوی دُکان تاله که دَ شکرو
جوهری م نظم اولیده ژړل یے
وے یے کم یے کړو قیمت دَ ملغلرو
گوپے به اخذ دَ معنو کا له بُلبُله
که صلصل م غزل وائی په سندرو
عنادل که م وئیل په غوږ و واوری
گویائی به ترک وروی دَ زړو
سخنور په مزه پوے زما دَ شعر
نه چه مغز یے بقر مومی بے شکرو
دَ لال قدر جوهری ته هویدا دے
ماهیت دَ زړو غواړه له زرگرو

درد دَ علم کشاده په فاضلانو
دَ کتاب مسئله څه زده بزرگرو

که نیوش دَ ختهٔ شعر کا دلبرے
دُر به واړه پرِ فدا کا دَ بیسرو
کلمه مِ دَغزل ترے شمیسنه دہ
که لا لونه زر تو ده وی په کچرو

دوره څوپه دَ ستم ناوکی وَلے
دَهجرؔی صبر سختی لری تر زغرو

هر نفس آدم په غوږو دَمرگ غاوُ
دَاُخرئ په لار دائِمَ دے چلچلاوُ
چه دَچا په تن نازل شی فرصت نه کا
یو نفس چه رُخصت غواړی دَ پایاوُ
لکه راغله له عدمه هسے لاړل
یو زنده په دا فانی نه شه تیکاوُ
که همه جهان پره کرے څوک به نه وی
چه داغ نه دی دَمرگی دَ اور په تاوُ
ځائے دَ دم وهلو نه په هغه لفظ
چه الف او یاء ورستی په سریئے واوُ
کتاب والئ مسافریئے توښه اخله
ته منصب غواړے دلے قاب دِ پلاوُ
چاته والئ متقی ولے دراز کړے
چه دِ جوړ شی په حرامو دَلاس داوُ

دا وئیل چه ظاهر کړه کے به نه وه
که دَ دوی وینا وَ زړه ته وے هراوُ
دَ پندار غرور دَ وزن دَ ځان غر کا
په میزان دَ عقل سپک یے لا تر پاوُ
بیهوده فخر رها فکر دَ ځان کړه
چه وریت لښے په لمبو کښ دَ آلاوُ
دَ خرقی صاحب په وقت دِ موت بنه دے
تر هغه چه یے میراث شی اسپ وکاوُ
هرگز مه وایه عبث خبره کښنه شی
حساب کا په هغه که ډیر دِ گنج و گاوُ
دا غزل په شلو یک حرف عدد کړه
دَ هر یو بیت مصرعه یے ده جراوُ

هجری هغه دَ هغو تور چه په یاری کښ
همیش کسی په نظر سیورے پتاوُ

# ک

مکره مکره له ما مه دروه دلدا ره
لما مکره ډار کوه له کردګاره

ما سرمد له اوره مه لره واله ږم
ماهه ورو کوم کلام همه د ډاره

سرو مال ودل ماواره وماه ورکړه
لا هم کله لما صلحه کا طرّاره

ماه دَماه له مهره ورکه لکه مهره
مُسک دِ هم طرّوکه سهل له ماره

هرآدم که دِ له مهره مهر سوړ کا
اسم ورک وه دَعالمو له قطاره

دوه ګوهر دِ هم واصل کړه له احمره
هم دَ وصل کړه له مهره جوړه ماره

دم له دمه صد ولک کاره مُلا کا
اکرم کم آګاه دَ دهر له اسراره

مکړه مکره دا رِدا له مهره دور کړه
دا واله دل دِ ماهم کله مسرور کړه
کله کله دا محسود د مهر وا کړه
دُعاګو ماهه واله دَ هر سحور کړه
دَ کُل ملک لره هاله دروَمه دَ ګوره
صد ولک واله عدم هاله صد ور کړه
له ودوده دُور هر ګوره هم السمر وَه
دل یئ اوس دماه له وصله هم سوکړه
دِمادل دِ اور دَ مهر واره وُسه
اوس له مهره هم واله کله معمور کړه
صد ولک کسه مداح دَماه مور ده
کله مور ملاله ماهه سمه لور کړه

ماه که سرو ملا له مهره کاا کرمه
ګوره ګوره له هوسه ماهه هور کړه

دَ حسرت په اور مِ ړک همه کوکل شه
په ملیه ښې یې کباب خرګاه دَ دل شه
ما دَ راز فکر ونه کړل په داد دَ عمر
که مِ مخ په آئینه کړو موسم بل شه
نمر دَ عمر سم له شرقه ظاهر نه وُه
بیا دَ غره په سر ولاړ په ډوبېدل شه
دَ شباب سبزه پرون همه تازه وه
دَ پیرۍ خزان یې نن په رېژول شه
دَ ځوانۍ دَ حسن ښهر به تاراج کا
چه لښکر یې دَ زړوالي په نښتل شه
دَ فنا خزان بریتونه ورته مسږي
چه زرغون دَ زمانې په ریاض ګل شه
دَ مراد اُمید پرون وَه حاصل نه شه
نن به څه طمعه کوَم کاروان په لښل شه
توجه مِ پرکارنه کا تل اوده وي
داځوي مرې بخت ښنګي که اهل مل شه
باد سلام راکړو دَ یار خروس دَ عیش
پر دَ زړه په سر وهي په بانګ وشل شه
صبره کله به کا کل دَ مراد دور کړې
دَ رجاء دیوار کهنه په نړېدل شه
نور به څه اوږده آرزو کوې خټکه!
دَ خپل عمر نهال کوره په ختل شه

## سپیدی عینِ کمال پسے زوال دے
## هجرتی عمر وداع کا په چار وَتل شه

هغه څوئ دَ نیسان راغله چمن ته
چه بُلبلو یۓ بلا کړه وديدن ته
لکه اوړکے دَ اختر رنګینه پوش دے
دَ باور په سترګو ګوره ګلشن ته
دَ عشق غم یۓ نتیجه څنګے حاصل کړه
کاش بُلبل کیتلے نه وے دَ ګل تن ته
که په خار دَ هجر غوځ شه سزاوار دے
عندلیب چه لاس کاوه دَ ګل دامن ته
دَ مُراد خوشی بلبل سر کړے نه وی
چه خزان یۓ آتش پړے باسی خرمن ته
پس له کاله یو ګُذر په ریاض کاندی
بلبل څکه تل په څیر ګوری سوسن ته
زنبق رخت دَ سفر جوړ که روانیږی
وا فرعرض دَ ید اوکړو یاسمن ته
شیرین عمر به بلبل په مرګ بدل کا
که دَ ګل ورق یۓ څوک راوړی کفن ته
عندلیب دَ عشق په کار تر قطب تیر دے
پیغور څکه په دا فن کاندی کوه کن ته

دَ مُراد نسیم گُجا بیرې لاهو شوه
کُوندِ اورسی ختمک دَ یار وطن ته
هغه دم بُلبُل په اور دَ هجر داغ شه
چه پرِ نه وېته وفا دَ گُلو من ته
دَ هجرؔی دَ زړه غنچه په خندا گُل شی
چه قاصد له روهه راشی دکن ته

دَ چمن اولاده عید مُ مبارک شه
داعشرت مُ یو په زړه بلکه لک شه
رنګارنګ لباس مُ واغوست له حمله
ترِ فدا دَ بُلبُلانو مردمک شه
دَ زوال خزان که بیا په ریاض راشی
تو یے په زمکه نحس ستوری دفلک شه
دَ هزار حسن زړه لوټ دَ هزار نه کا
په مه دگلابه ته شتاب کومک شه
هرچه نن دَ باغ په سیر تغافل کا
دَغم لاس لکه چوګان زړه یے پتک شه
ګریه ته چه دَ طوطا په ځائے شیوه کړے
په سینه دِ برابر غنبي تویک شه

غمازِ یار لره روان زما په قصد شه
نحانحے یے په فال به مرغه شیرک شه

رقیب تل په ښو مینو حسد کاندی
په ځیګر یې د بلا ناوکی لک شه

داوینا په سرود بیا وایه مُطربه
چه ترنام د یار فدا هجری ختک شه

چمن بیا ځوان شه زلمیو مُبارک شه
د هر ګل ترمخ یې ځار هجری ختک شه
نن موسم د نایې وچنګ او د رباب دے
د پیالے د لبو یار نُول د سبزک شه
نن که نیت د بیلتون کا په دوه وُمینو
ز ر نادم په هسے نیت کبُود فلک شه
یار مِ لاړ دے په سفر خیر یې غواړم
نګهبان یې د آسمان واړه ملک شه
چه حسد په وصال کا د ښو مینو
په شدید عذاب اخته غماز مردک شه
تل په ګفت د غماز ما لیاسی بولی!
له خاطره دِ بیرون بیهوده شک شه
د یار زړه له یاره بد په بد وئیل کا
د رقیب قدر لا هیڅ تر ذاره کک شه

ستا خبرے چه ماوا وریدے په غوږو
ترے قُربان قند و شکرے د اتک شه

ترِیانه پوره یې زرکه مسخره ده
تر زبان یې صدقه کویا شارک شه

چه په بد نظر څوک یار دَ هجري کوري
هزار غشي یې دَ غم په ځیګرلګ شه.

---

چه یې نه غځ له ازله په بهبود وُه
دَ نبي دیدن هغه ته کله سود وُه
تاثیر کله دَ نیکانو پند پرې اوکړ
ابوجهل که فرعون اوکه نمرود وه
کاف و نون یې دَ قدرت په ژبه اووې
نور همه خلق یې امر ته موجود وه
لا هاله یې بجرې اوکښې په کتاب کښ
چه نه اسم دَ آدم نه یې وجود وه
عنایت واړه دَ خدای چه څه چا کا!
له ازل دَ یو شقي صفي مسعود وُه
دَ هر چا لار یې بیلې هغه دم کړې
چه نه نوم دَ نصرانې نه دَ جهود وه
که خواهش دَ قضا نه وے یقین اوکړه
یو سړے به نه ترسا نه یهود وه
چه اولاد دَ یوه پلار که یې رضا وې
مسلمان به دَ آدم همه جنود وه

زه به څنګ کړم د احمدؐ مدحه بیان کړم
چه شرف تمیې ډیر له چرخ کبود وه
نوم یې ځکه محمدؐ احمدؐ محمود شه
چه منصب یې ازلي مقام محمود وه

چه هجریؔ یې د احمدؐ حلقه بګوش کړو
له ازله پرې ډیر مهر د معبود وه

---

چه صبا پرې حمله اوکړه زما سخ شه
برهنه یې له نقابه راته مخ شه
هم یې زلفې په نسه مخ باندې خورې شوې
هم پیدا په ښه روښ چاه د زنخ شه
زړه په څو د عشق له سیله کناره کړم
چه د لوېې دریاب په مخکښې لکه لخ شه
په خندا خندا ئې یار وښېل زما یې
په رقیب همه توده اور د دوزخ شه
پرون قهر خسرو کړچه مینه مکړه
نن م منع غماز کاندی راته سخ شه
ما د شیر په غوغا شا نکړه ویارته
پاتون د ډېسې تور پیشو په پخ شه

هجریؔ ډیر شکر کوه پتا لازم دی!
چه غماز یې لکه سپې له دره چخ شه

ماوے زړه دَ شباب وار مثال په خره وه
وے یے لاړ په یوه تخ دَ سیل اوبه وه
نور به رانه شی هرګز اُمید یے مکړه
شیرین عُمر دَ هوس که هرڅو بنه وه
دَ وصال دَ خوشئ دور هسے تیر شه
وائی ناز په هغه تخ دَ خوب لیده وه
ژاړه ژاړه زړه دَ وصل دور ژاړه
چه یے نه دَ عُمر سور نه یے اوږده وه
ماچه وار دَ هجر اولید باور اوکړه
نه یے حد دَ طول پیدا نه دَ ساره وه
دَ زړه کورم هسے هجر دَ یار اوسو
ماوے اور دَ بلا می په اوچ واښه وه
هغه یار که په مدک غوارم نه یے مومم
چه مجلس یے بامزه تر هر خواږه وه
ځنے هسے ملوکان موت تړاب کړل
چه بدن یے همه سپین لکه شوده وه
بنالسته عُمر هغه نوبت یے تیر شه
هر نفس چه یے هوس دَ لوے واده وه
عیش نشته په دُنیا همه ارمان دے
بنده نن په حال خبر اول اوده وه

ماکانه نهال دَ عُمر چه محکم دے
کوم خیر نظر پرے اوکړو په خاته وه

هر ساعت چه په هجری دَ دور پیښ شه
کړندې دَ باد په مخ لکه اوره وُه

هیڅ خبر نه یم له خپله سر نوشته
چه م چار په ازل نیکه ده که زِشته
دی جدل ازل بدل نه که واعظه
په ناحق م امتناع کړے له کنشته
بو البشر چه یے رب خاوره له اوله
جهل صبا چه دَ قدرت په لاس آغشته
مر نهان عِلم چه وُه پرے یے خبر کړو
قضا بیا ولے خارج کړوله بهشته
هر ملوک چه پوخ محل په هوس جوړ کړو
دَ گردون دور آخر که خښته خښته
چه یے ناز په دولت کړو همه بے عُذره
مرګ جُدا کړل دَ اطلسو له بالښته
په ارمان حیاتی کا څو مسافر شی
هر لیس چه مور پیدا که په دا دشته
په دوران دَ جفا تخم دے کرلے
دَ وفا خوشه یے مه غواړه له کښته

نور همه رنځونه سهل دی هجری ته
هجره ته په جهان مه وے بد سرښته

جگی جگی یو ځل بیا دا شه اقباله
را معلوم شه قدر ستا پس له زواله
چا چه ستا په دور لاف دَ یک رنگی کړه
نن منکر دی له هغه واړه مقاله
ستا په مخ په هغه تول راڅخه لاړه
هیڅ اشنا اشنائی او نکړه تر کاله
هغه لاف و کاف چه تل کوه یارانو
یو قرار یې خالی نه وَه له ځیتاله
چه سوګند به یې له مینې تل پیا کړو
اوس صلاح راسره نه کا بې قتاله
التفات یې څه خو بیا په لوری اوکړه
چه لا کرم شی یاران تر هغه حاله
ما اُمید دَ یاری ډیر کړو له یارانو
ولې نه وه دَ هیڅ یار یاری بې ماله
هرګز مه غواړه وفا له زمانیو
دا وینا ده تر محالو لا محاله
که وفا غواړې له خلقه اول ورشه
په غو بنتلو کړه پیدا دَ بازو جاله
څو اُمید دَ وفا پرېنږدې له خلقه
امان نشته دې دَ فکر له جنجاله

فرزندان یې همه مور غوندې کاذب دی
محفوظ نه لری یو دوی له انتقاله

## هجري لوړے دَ قرار په جهان نشته
## عرض و طول یے واړه ډک دے له کشاله

لکه ماته شوه درازه دَ احزان شپه
وهیچا ته پیښه مشه هسے شان شپه
زړه آخر به نهایت شي همت لوئے کړه
که لیده په سترګو نه شي دَ پایان شپه
که هر څو عالم په توره خیمه پټ کا
ولے بے سحره نه وه په جهان شپه
البته به ثمر دَ وصل جلوه ګر شي
په چا کله پائنده وي دَ هجران شپه
هغه ورځ چه دَ خوشۍ وه پاتو نشوه
تل به هم قائمه نه وي دَ ارمان شپه
برایه مِ دَ یار یاد په زړه غالب شه
نهایت مِ کړه دَ دُرو په سیلان شپه
په احوال مِ دلسوزي سپهر نه کا
تل روشنه کړم دَ چشمو په باران شپه
په خوږ زړه مِ هسے کار کا لکه مالګه
چه را یاده کړم دَ وصل دَ زمان شپه
دَ رنځور له درده روغ هله خبر وي
چه په خته عذاب تیریږي په حیران شپه

پہ کومک بہ دَ بخت هله باور اوکړم
که مِ اوشی یوځل بیا پہ کوڅے دَجان شپه
نن حیات څه حیات نه حیات هغه وَه
چه بہ روڼه شوه دَ روه پہ گلستان شپه
بنادی څوک پہ وسیله دَ انده وه مومی
پہ ناحق دائمِ پہ غم کرمه گذران شپه
بیهوده حرص باطل مگر نصیب وی
چه موجوده شی دَ گلو پہ دامان شپه

دَ هجران له تاوه آه که هجری اوکا!
تورلوګے بہ یے کاتل پہ هندوستان شپه

---

زه بہ څرنګ برخوردار شمه له بخته
چه پہ شا وینم اشنا راته یک لخته
دیر خزیدمِ دَ یارِی پہ دوکان اوکړو
ولے سود یے هیڅ ولاړ نه شه له رخته
ما بہ باغ دَ وصال نه کوت که خبر وے
چه یے گل دَ هجران خیژی له درخته
لکه پرے کا هجر زړه دَ پردیسیانو
هسے غوڅ نه کا چورنګ توره آهخته
دَ عشق شاه مِ دَ خاطر ولایت خپل کړو
اوس دِ رخت تړی دَ کوچ صبر دَ وخته

په سریر دَ حُسن هومره دماغ مکړه
ډیرے لاړے په ارمان له دغه تخته

خو دارو راځئ دَ وصل کوره څه شی
په هجری شوه بیماری دَ هجر سخته

---

دَ بنه مخ ضیاء دِ پس کړو مهرو ماه
دَ عنبرو نرخ دِ څنو کړو تباه
اُوبز دے زلفے دِ کوتے شوے په تاؤ کښ
اُوس به لوے عُمر دَ یار کاندِ کوتاه
سپک نظر عاشق ته مه کوره مزری دی
خو وتا ته زړه عاجز کړو ستر روباه
ولایت دَ حُسن ستا دے مُبارک شه
ته امیره په بناسُت جونه سپاه
خو به ته متناهی کړے دَ نورو څه دی
چه نصیب دِ په ازل که خدائے کلاه
څوئے مخ بنده لیدلے دا دُعا کا
چه دایم اوسے قایم دَ زیب په گاه
دَ خدمت تجویز ئے زه په نورو نکړم
مکړ لورو ے دَ قیصر دَ مستے داه

یو نظر اشنا را وُبنایه سپهره!
نور مِ تن کړه برابر په خس دَ داه

په روښنې ورځ به نځویه لوګی پټ شي
که زه اوګرم دَ هجران له دُکه آه

## هجری ځو به ستادَ تن قصر ولاړ وی
## هجران اوسو په آتش دَ زړه خړ کاه

چا به ورنکړو دا زیب په ډیره مرسته
په نامی نام یې نامزد شه له الستة
دَ قضا کارکُن یې قد هسې موزون کړو
چه ترحده نه لېږ هسکه شوه نه پسته
چه شکست یې تل شکست کوی دَ زړونو
دا دیې بویه دَ زلفینو له شکسته
زه دَ ګل مینې کښان بوتم چمن ته
ترمالا اول په باغ وه مې پرسته
له مستئ هسې غلطا نه په یا نه تله
چه یې کوته تشه پاتو شوه له شسته
بس چه مسته کړه مستئ دَ مستو مسته
دَ مستئ باده یې اولویده له دسته
چنار تولې پنجې پرانتې له شوقه
دَ بُلبُل په صوت یې لاس وهل له قسته
ما دَ ګل تماشه کړه بشرم اولید
ګل یې خس شه دَ بنه مخ له بند وبسته

گهے دا هنگامه جوړه په ریاض شی
بُلبل مست گلونه مست صنمه مسته
ننداروله رادرومه زمانیو
دا بنادی په ریاض تل نه وی پیوسته
زه ختک له یاره بیل دُنیا به څه کړم
که دائم وی په دا دروغ وکړی هسته

هجرَی یو گذر دَ یار په کوڅه اوشوے
چه پرے اوکړی له هوسه یوخوجسته

---

برایه مخ راښکاره دَ هغه گُل شه
له فروغه یے فروغ دَ چراغ گُل شه
دَ آهوؤ له مستی چه یے خبر شوم
لباسی راته ښکاره سکردَ مُل شه
ستا دَ زلفو خو بجه هسے شرمنده کړه
چه وطن دَ سرو کمرو دَ سُنبل شه
مخ دِ هومره گُل په اور دَ حسد اوسو
قرار نه کا په ریاض جوګی راول شه
نن په اور دَ هجر دوه تنه وریتیږی
دَ آشنا له درده زه دَ گُل بُلبُل شه

دَ اوریل لښکر دِ مات شه له دریو
له جبینه څکه لاړ که په کاکل شه

گل که هر څو مطرّا خو یو بالهِ شي
یو بې سر دِ په بیني په گوس ئې گل شه
یار به کله هومره دور فوه له ختکه
تر دا میان فتنه کوي بلا چُغل شه

نیرنگی دَ جهان گوره زمانیو
دَ هجري مکان دکن جات په کابل شه

---

چه دِ کینول په پنه مخ دَ زلفو ولونه
مهیا دِ خوږو زړو ته کړل ځیلونه
په دا دور مِیره ته یې دَ گلرنگو
په اخترم وارَه اولیدل تولونه
ماتَه ماته په لار ولے ځے دلبرے
گوندِ زوره په تن کا دَ سر شالونه
ستا په رنگ لون دَ گل په ریاض نشته
را معلوم دي یو په یو دَ باغ گلونه
سر و مال یې تر یوه نگاه فدا شه
که راضي دے یار په سر یا په مالونه
هر خاطر قباد دَ وخت دے خسروي کا
چه په چاه دَ ذقن بند دي لکه غلونه
لوگے تل دَ اور په سر باندِ شمله وي
په رخسار یې هغه شان کنه خالونه

دَ بنو په تیریږې دړې دړې مات کا
که هر څو مضبوط دَ صبر دی ځیلونه
نازکي یې دَ قد زیاته تر هغه ده
چه یې وصف څوک ادا کا په کالونه
یو صفت یې دَ خولې لمانه وارو ه !
په څو رنګه یې عالم کاندی قبولونه
تل قدم دَ ګل په سر کیږدی له قسته
کوز یې نه کا یو ورق دَ ګوشو پلونه

هجریؔ څو لار غه دِ اوکړه په دکن کښ
په کاته جونو ز لبی کړه اوربلونه

که دَ حُسن جونو نه درلے ګنجونه
نه به کبر ورځنه وه نه قینجونه
خویږ مخ همه ګنجور دَ صباحت دے
پرے ماراتو ځکه کړی دی پیچونه
ما چه زړه وَیوه ورکړو دَ بل ځه دی
په یوه شهر دوه چا لیده راجونه
نن یې سترګے په رنجو کړے ماربه او کا
تر کوغم لره په آس اوکړه سرجونه

دَ بنا الست جوړه یې نه وینم په دور
دَ غبرام ځلور او غښته ګنجونه

بیا یې زُلفې هسې تاوُ کړې په عُذارو
لکه جنډې ته مُهیّا دَ زنګ فوجونه

دَ سِنا نَست په نزدې یې وارَه مُنقّش دي
شش ویک مهر دَ چرخ دوشش برجونه

گوره کله به ناظر په هغه مخ شم
چه مې کړه دَ زړه کا پسې کوچونه

اول ورشه مخ یې اوګوره ناصحه
پس ومانه وعظ کړه په مخرجونه

هرچه کړه دَ عشق په ډب رهاۍ نشته
یم یې لس دَ سمندر لرې موجونه

دریغه نه وي هیڅ بلا دَ کُلرخانو
په بدل یې تل دَ دروغو وي رنځُونه

**په یکین دِ زړه سینه کړه مهجوره**
**په ګذشت به یې هغه کاندِ زلمي جونه**

---

په بشره یې ځنې نکړې لحکونه
بل پیدا یې کړه میتوته مرکونه

مجالس بیعمه مه کا ښه یارانو
دَ قیامت دَ لارې آخا ښه برګونه

دې واغسته صندل په سرې کمبلکا
آماده یې کړل دَ موت دستکونه

دَ بناګست پوله چې چرته ده عالمه
نه باور پرې ګماني شه نه شکونه
پیوسته چې دَ مخ لکه رګه پیدا دي
هر یو رګ یې بها کیږي په لکونه
بنر دِ هله دعوه کاندي ستاله مخه
که له تنه کا پیدا سیاه رګونه
خو به ډیر سره جدا کا بې خنجره
بیا په سر دَ کو تو یون کاندِ ګلګونه
دَ سالولیه چې تیره تر سما ده
نه به بنهر سالم پریږدي نه تړاکونه
زه به څشکل دروغ وَتم دَ شاه له کویه
چه صد هایې په در مره بلکه زرګونه
چه روښن دَ بنکلو جونو په مخ نه وي
ویرانه کنه وِدان همه ملکونه
هجري اس دَ شوق تیز دیار په لار که
په ارمان چې هجر او ښوول تنکونه

چه اُمید په دا ږ دَ عُمر کوے لوا ړه
ته به څو پا ځې زندہ په دا اوجا ړه
په دا لار چه ته ولاړ وګړے تیر شه
البته به پسے دروځی پا تو وا ړه
لوزاثر دَ تیرو غوا ړم مو نډ ړه نشی
قافله یې په کوم لور وچړ ته لاړه
دَ یارانو په سینو ما ځے بنا شوے
ستا به څو وی دَ صورت ما ځے والا ړه
چه عبرت دَ همساله له مرګه نه کا
سغه زړه کو درځ بوله بلکه تراړه
هیڅ وفا دَ دهرشته پکار یې ځیر شه
په لاس او مړی دَ عقل ستر ګے دوا ړه
هغه شاه چه یې سرير باد په هوا وړه
ځان یې خلاص نکړو دَ دهر له لتاړه
که وفاله دهره غوا ړے یو ځل ور شه
شو لے لو کره په لار ځه له اوځه کاړه
په دا باد عمل به هله ارمان او کړے
چه دَ مرګ ها تھی دِ کیږدی په لس دا ړه
تل په زمکه مردان وی سیس به دِ زرکا
که مشتاق دَ سرپیتوب یې اوے غوا ړه

دا فنا مکان دَ غم بنا دی یې نشسته
که بنادی دَ بقا غوا ړے ژا ړه ژا ړه

په تور زړه به اثر اوکاندی پند ونه
که باران کا تره نرمه له پها ړه
هر سړے چه په اسرار دَ کار خبر شه
ترا طلسو خوښوی کنبله شا ړه؟

## دَ هجران یادیے وهی خوبه یےمات کا
## دَ هجرَی خاطر باریک دَ ګُل ترناړه

که هر څوم دَ خاطر مینه پتا ده
دَ هستئ بهره یے نه وینم فنا ده
ستا دیدن به زما څشکله روزی شی
نه همیش په دور زه نه ستا بقا ده
دَ فرقت خونه پښه دَ باد په مخ شه
له جفا یے په عالم کښه غوغا ده
دوه میئن به سره پرے نه بزدی په رب کو
دَ بقا اندیشه مکره ناروا ده
چه هوس په یار د کالا هه یے څه ده
یونفس په دیدن خوش تل یے ژړا ده
څکه غم دَ یار کوم قرار مِ نه شی
ما لیدلے دَ ګردون ډیره جفا ده

ما و یار به نهایت هسے جُدا کا
لکه نن مجنون کجا چرته لیلا ده

مور به نشی په گشتن دَ عاشقانو
چه یې سعد په نس دوب بلا سماده
هو ستم چه فلک کا چاره م نشته
په قیامت لمن دَ ده منګل زما ده
دَ فرقت له باره ن لکه لینده شوم
لا به څه شی دَ وصال طمعه صبا ده
یو خُل ستر ګې روبرو په هغه مخ کړه
چه م خونه دَ خاطر پسې تالا ده
صفا بوئیں له کومه ن په دکن راغې
سر په سر یې مښک وناب همه هواده
باد دَ یار له زلفو شم راوړ وله روهه
که اصلي نافه عطارو کره واده

هجری تا په شکایت هجر بدنام کړو
اشنائی اور لګوی توره بلا ده

نن غوغا وینم په ده قیام قیامت شه
که څر گند یې په کوته دَسام قامت شه
سور لباس یې پوشیده ه بخری لوڼی
که لمبه له سقفه ځي په بام آفت شه
دَشاه حاء وسین ونون یې مشاهد که
هر دوکف یې په دُعا لام اقامت شه
وله نر وړه پرنده خال یې دانه دے
په سپین مخ یې دَطرو دام قیاحت شه
بیدلان دَغم په ډب کښ سُکرات کا
محبوسان یې شُکر کا چه مو راحت شه
حدیقه یې له قدمه رنګینه شوه
مُحلِه یې په ګُلزار دام صباغت شه
رومی تل په دو دَ سترګو بیزلـه
په خرام یې دَ نیلی تام نزاکت شه
سور پیزوان یې مسرت کا په لبانو
سمندر غونډِ یې اورمُدام راحت شه
دوه حرفی بُوسه مِ غو ښته معاتب شه
په ساري جهان شهره دام اقالت شه
ځکه تل سروِنه ډیر ننه یې کینبوه
مکانی یې بیسر نام په نیابت شه

چه دَعشق سورو یې تاخت رابانډِ اوکړو
ترشکیب مِ اولی ننګ ونام غارت شه

## دَ وصال په امل تل هجری تازه دے
## که یو دم دَ هجر ډیر ترعام طالت شه

برا یه مِ په ذره میشت غم دَ دلبر وُه
نه شکی شوم په ماښام نه یے سحر وُه
نه مِ ژغ دَ سپیو واوریاره په غوږو
نه پیدا دَ چرګ ږغ نه یے اثر وُه
لام غم په دهر غم کړو ژغ یے هیرشه
یایے تن زما دَ آلا په وینو تر وُه
په شماره یے اِسم یو چه غم باله شی
تعینات ورسره ډیر خره لښکر وُه
دَ ستم لاس یے دراز کړو په هر لوری
عیش وصبر یے تالا کړو زوره ور وُه
دَ شتا بیا سبق مِ واغستاله نسیمه
تر قدمه مِ دَ عشق لاندِ سم وغز وُه
په طلب مِ دَ غبرا چو لو نه طے کړل
دَ فکرت سُرنګ مِ سر په بحر و بر وُه
موافق رفیق مِ بل دَ لارے نه وُه
مګر عشق مِ مقدم چه بنه رهبر وُه
چه اثر دَ یار پیدا په جهان نه شه
کیفیت مِ دَ احوال همه بتر وُه

نهایت یې مخ څرګند دَ زړه په سر کړو
بنده لره ځکه ته چه بې خبر ؤه

یار ؤه ده ته مُقرّب تر شه زګونو
هجرؔی چړته بیهوده په عالم سرؤه

دَ شفق سُرخی په شام ده ګونا ګونه
که کاکل دِ په څهرے کړه ؤلونه ؤلونه
تا شانه ځکه په څنو باندِ کیښوه
چه جلا کړے دَ ولّه زړونو ښهرونه
چه دِ لاس په کُشته او څکاوه په زُلفو
دَ زنخ په چاه دِ پټ شول همه زړونه
کجه کجه په ناز دروے فهم بویه
لاندِ نکړے تر قدم دَ مخ ماړونه
په دا دور شاهه ته یې دَ کُلر ننګو
پورے جُونه په چاوے کا قینجونه
سکر ستاله ستر ګو میو دروېزه کړه
هر نګاه دِ ځکه تل کاندی خونونه

دوه مرجان دِ دَ هجرؔی په لبو کېږدی
په تش چیپ دِ مسته نه کاندِ جنګونه

بړ بړ راغې هغه یار چه مې پکار وُه
له جهانه مې پکار هم دغه یار وُه
که یو دم یې تغافل وې په راتله کښ
تار پتار مې ورپسې دَ عُمر تار وُه
چه مشعل یې هویدا شه دَ رُخسارو
په هر لور یې گریزان دَ هجر تار وُه
چه یې لاس زما امیل دَ اوږمیږه کړه
له نشاطه مې دِ سترګو دُر نثار وُه
هله یاد دَ گُذشته غمونو هیر شه
سر له سره وار دَ بوس او دَ کنار وُه
نن سحر یې په چمن کښ خوش ګوئی کړه
عندلیب په ګُلونا ست په سر دَسار وُه
بنه نوید یې پما کړو چه یار دِ راغې
چه مې دل مین دَ یار تر نوبهار وُه
ډمه غوږ دَ رباب تاؤ زخمه پرکیږدٔ
بې له یاره سرود نه همه بیکار وُه

له نظره یې هجرؔی هومره کیفی شه
چه ترمستو مُفرّح ولې هوښیار وُه

بنه زمان وُه دَ شباب لکه باد تیر شه
خراب دل مِ په افسوس له غمه زیر شه

شباب خوږ حاکم عامل زما په تن وُه
په تغیر عمل یئے وارۀ په یل پیر شه

بیا به وخت دَ کودکۍ پیره اونه کا
بس ارمان مِ په خاطر لکه شمشیر شه

غمه څګه مِ ګریوان دَ نِشاط نیسے
چه خبر دَ میئن نه را دروی دیر شه

دَ یار نوم مِ په زبان غم یئے خفه کړم
لکه اُوړکے دَ مکتب سبق مِ هیر شه

هجران څه غیبي آفت دے په ګوګل کښ
چه اثر یئے په رنځور ویښته دَ شیر شه

وارۀ غم راته دوخار کړو د فیقا نو
نو بهار دَ وصل لږ هجر یئے ډیر شه

ډیر فراق مِ نظر کم کړو له چشما نو
که غُبار دَ فرقتو نو دے اند هیر شه

زه خټک په چا خوږ ے کړم ستر ګے خپلے
تور ګوار پکښ میشته نوم یئے خُبیر شه

دَ طوطا خصال له ګریه موندۀ نشی
شرشم هم زو ږدی لری دَ ګل په خیر شه

زند ګی یئے تل محنت مکان یئے خاورے
دُنیا سجن دَ بلا سرے پرے کیر شه

هغه خوږ رياض څرګند کړے وختک ته
چه په لاريے لوم دَ خاورو شکر ديږشه

په خاطرم ستا دَ هجر بيماری ده
په رالله تغافل مه کوه زاری ده
دروغ نه وايم بے شکه باور اوکړه
حياتی په دور بے ياره خواری ده
نهايت يے بهادر دَ هجران لښه کا
چه په اس دَ وصل کړے چاسواری ده
دَ دوزخ عذاب چه ګورم په کتاب کښ
نمونه يے دَ ياړانو ويزاری ده
چه عذاب شتابم اوليدل دَ هجر
په دُنيا کښ عبث چاروالیُ ياری ده
لما طمعه دَ هوش مه لره عاقله
انديشه م دَ فُرقت په زړه جاری ده
زما زړه په نور صاحب دَ عيش نشی
چه دَ عشق په نرد يے کړے جواری ده
دَ بنادی طمعه هرګز له دهره مه کړه
دَ ارزو په ژبه نيش دَ مزری ده

ما هرګز بنادی په خوب نه ده ليدلے
څو دَ زړه په سرم کوزه هوښياری ده

گُذشته عمُر خیال که خوب لیده وُه
همه شپه مِ په دا فکر بیداری ده
هغه دور هغه وار څه شه یاربّه!
په دا کار حیرانی ډیره دَ هجرؔی ده
په غشوه یې غلط مشه شوهر وژنی
دُنیا څکه روې ناوے بازاری ده
دا ناځکه ناز په داد دَ فلک نه کا
چه پیشه یې همیش مکر و عیّاری ده

اے هجرؔی ته چه لذت دَ قرار غواړے
په دا دورانه دُنیا چرته قراری ده

---

دَ یار نوم چه تل په ژبه گرځومه
په عزیز نامه یې ډاډ دَ زړه کومه
صبوری له هسے یاره ده مشکله!
چه یو دم یې بے دیدنه نه پایمه
توبه څشکل په دروغ کوم واعظه
چه دَ زړه روغه له صبره نه ویمه
طبیبانو لاس په سر کړو له علاجه
چه دَ رنځ دوامِ نشته خوبه مرمه

وله زړه مِ په دلبرو پسے زغلی!
خپل یې نه کا په غریبله مهدمه

تورے زُلفے په مبنکی دا نوڼه ندے کړه
حاجت نشته چه دانے پرے او کړمه
نهایت به دیوانه په دا نو راشی
ستا دَ زُلفو په زنځیر به یے ترمه
دَ هوس په سینه لاهوا ثریے نشته
دَ نشان طلب یے ګرم که یے مومه
عشق له شش جهته بُت په هوا کړی
زه دَ تن له بنده څه شکله ؤوزمه
هر زمان یے په همت طلب ته جوړیم
دَ رفتن طاقت م نه چه پسے ځمه
دَ حیات رمق م شته ځکه بیخوده
لکه پروت زخمی هوسے لتے وهمه
حیات سل ځله پیدا تر هسے موته
چه دَ خپل صنم په یاد خپسر شیندمه
نور بدن یے رعیت قلب یے بادشاه دے
نا صلا چارے چه کا ځکه یے ورمه

ما هجری په دا فتوه دَده باور کړو
چه خاکی قفس ته شاکرم هست به شمه

چاپیره زُلفینې دام مخ دِگُلزار شه
ما گُلونو ته کتل زړه گرفتار شه
کا نوری گلونه اوزوول له غیبه
تاچه بناخ دَ مښک دَ قهر که بهار شه
ته دَ ناز رفتار کوې په چمن گرځې
په ادب منګلې وا در ته چنار شه
گُل کینه دَ همرنګۍ اوکړه دلبرې
چه دِ شمُ لړه اغست په کف دِخار شه
آئینه دِ روبرو همه گُلزار کړه
مخ دِ گُل ثانی دَ گُل ترې نمودار شه
دَ سرو زرو خوشبوئی له اصله نه وه
تر صندل بوُئې دَ آخلی چنارن هار شه
سره لعلونه دِ حجاب په ملغلرو
گوره مینه دِ په سر پرِ گُهر بار شه
نازک وچولې دِ چین وینم ملوکے
په جبین دِ گوندِ وزن دَ خال بار شه
ستا دَ مخ په لمبه زړه محبّت وسوم
تکبّر دِ بولاق کړو ځکه په نار شه
زما منع ستا له لوره ده مُشکله
منصوّر کړه یوه خیره خو په دار شه

راشه څه خو دَ ختک له حاله زړه کړه
چه بے تا عُمر یئے څرنګه دشوار شه

دَ سپین مخ جلا دِ هسکه ترسماده
له جلا دِ حاصل کړے نمر ضیا ده
نمر دِ نور له نوره مومی دے له کوتے
ترنمرځکه مجلا دَ شصت بربینا ده
دَ مړوند په شغله ذره په زلزله کړے
دا روش چه توره کا شاګرده ستاده
مخ اوزنه دِ دَخه سره مخی کوم
چه ترګل ډیره هغه زیبا صفا ده
چه هیڅ دار له مرګه نه کا عاشقان دی
چه یې ډیر په کوهی دوب زنه دَ شاده
که یې سترګے آماده وجنګ ته نه دی
په ترکښ یې لیندۍ پاس څه مُتعاده
اژدها یې نګهبان مخ یې بهار دے
لاس چه ګل لره وروړی زهره دَ چاده
چه جفا په وفا کانږ خو یې دَ شاه دے
چه وفا کا په جفا مینه زما ده
وَاوربل دِ بل که اور په عاشقانو
دَ ده هم ځکه آخر خونه بیدیا ده

اوربل تور له اصله کله وَه ختکه
له آهو نو یې حاصله دا سودا ده

هر زنده چه په دا خونه دَ عذاب شته
نهایت یې تورو خاورو ته مآب شته
نیک و بد عمل چه کړې جزائې حق ده
دَ یوه بدل عذاب دَ بل ثواب شته
دلیري په خیانت دَ فرمان مه کړه
په ادب معاش کوه ځائې دَ حساب شته
په وسعت دَ جهان ځائې دَ غرور نشته
چه په مخکښ تنګه خونه دَ تراب شته
دَ راحت مدت به هرګز دَ چاخپل نشي
چه یې ضد لره دَ دهر انقلاب شته
دَ مراد دَ عنقا تن کله موندے شي
څو په سیر مخیّر اوده شهاب شته
په بقا دَ حیات څه لره اُمید کړے
چه په تله دَ عمر دا همه شتاب شته
زه که حال دَ جهات وایم فضولي ده
نمونه یې خیمه کواهه دَ حباب شته
په مراد به دَ وصال میوه اونه خوري
په دُنیا چه دَ هجران ضد وعتاب شته
دا وئیل به په دیوان دَ مرزا نه وي
که باور دَ دویو نه وي په خطاب شته

که انکار په زره لرې سیر یې اوکړه
که مې تیر شه مُصنّف هغه کتاب شته

دا غزل چه هجرؔی او وے یقین اوکړه
که یئ لوم شاعر په دور دَجواب شته

# ی

پما مکړه ملامت زړه مې فګار دے
جدائۍ رابانده کړے پټ ګذار دے
روغوځه لره بیځایه پیغور کا ښې
سترګے ځکه ژړا کا چه زړه بیمار دے
د ناستی زمکه مې ښیے اوښکو سره کړه
ته به وائے باغ زووے لاله زار دے
خو یه مه راځه نز دے پکښ په ډوب شے
تر چشمانو مې د اوښکو شړه هار دے
پښے مې څه خشکل ترے دوُ دیار په لور کا
تر بنده ونوئے ولول وینم تور مار دے
ما یه لاس پورے په ګل د وصال نکړه
که مې زده وے چه یئے مل د هجران خار دے

د ګلو رخاورے به یئے وران په جدل نه کا
ما د زړه په تخته نوم کښلے د یار دے

راشه حال دَ پردیس اوګوره په سترګو
چه بې تا نه لا نزې دَ موې تر تار دے
دَ وصال اُمید کوی ګا نده به راشی
نن خوجنګ لا سره کا دَ هجروار دے
خاصیت دَ جهان هسے رنګ لیده شی
ګهے وار دَ خزان وی ګله بهار دے
په دُعایې یادوی دَ روه طوطیانو
بنده هم په دُعا یاد لیل ونهار دے

بیجاپور به هجری څه کاوه یارانو
دَ قضا علاج پرے نه کیږی ناچار دے

دَ مجنون دَ مینے دور اوس قضا دے
نن زماله عشقه وایه وار زما دے
وار په وار له تیر ودور پیما راغے
ګا نده نهٔ زه خبر چه وار دَ چا دے
سل داغونه یې په زړه له دُنیا لاړه
فریدون که منوچهر که کسرا دے
کاروانونه په لارځی دائم یې وینم
منزل ګاه دَ دُنیا سرائے وطن اُخرا دے

اوس صفت دَ یار له څخه کړه مُطربه!
زیبا تن په ګورګنی خاور ے دَ لیلا دے

لکه زه دَ عشق په کار ترو آمق تیریم
یارم هم فائق په حُسن تر عذرا دے
دَ ارمان غشے به لک په ځیګر یوسی
هر زنده چه پیدا شوے په دُنیا دے
څوک چه ناز په وصال کا دَ بنو یارانو
دَ هجران عذاب هغو لره پیدا دے
دَ وصال دور که خوږ دَ چا پرِ خه دی
چه یۓ نه پریږدی قرار هجر بلا دے
عاقبت به هجر واړه یاران بیل کا
هیسے نه چه یو خټک غریب جُدا دے

زه هجری دائم هوس دَ خپل وطن کرم
بیجاپور که هر څو ښه دَ اورنګ شاه دے

---

هغه دم چه یار لما سره قریب وی
که یاد راشی په مجلس لکه رقیب وی
هر عاشق چه غوځ په تیغ دَ محبت شی
په دارو یۓ حاجت کله دَ طبیب وی
په رښتینی عاشق خوږ وی تر نبا تو
هغه جور چه پرے کړے خپل حبیب وی

چه بازار په ریاض جوړ شی دَ ګُلونو
دَ بناخ سر لکه منبر بلبل خطیب وی

پو قدم هجران له یاره خرابي ده
زار پښتان دے دَ ښغوچه دوه جریب وي

دَ بنه یار مجلس تر هر دولت بهتر دے
په دا کار هغه پوهیږي چه لبیب وي

هجري ته خو تل هوس دَ ولایت کړے
ولے ستا ورتله محال مګر نصیب وي

ساقي! جام کیږده په کف هنګام دَے دے
مطرب ساز ځکه په لاس کړو چه پسرلے دے
چه په ښي لاس یے نن زلفے په کیڼ جام دے
هم هغه ثاني کسریٰ حریف دَ کے دے
دا زمان همیشه یار دَ هیچا نه وي
په ارمان ځنے تیر شوے هر سړے دے
چه م نن په خلوت راشي ځان اوزاړي
که په تن خسرو دَ هند وي که یے څوے دے
زه لاله غونډِ خام نه یم په هجران کښې
چه په لاس کښې م بنولے دَ زړه کے دے
په دوران دَ یار دَ حُسن حریف نشته
ګل چه لاف دَ همسري کا لیونے دے

په عارض باندِ یے خال دَ چه یے وینم
که په مهر ځاځکے توے دَ مښکو خوے دے

دَ خورشید کلونه جوړ پکښ لیده شی
په هر ځائے چه یے دَ مښکو پښاخ سوړ دے

زړه م دیر په دا وینا همیشه ښاد وی
چه ښادی دَ جهان گرد غم لکه باد وی
تیر ساعت یے هیڅ تاثیر په خاطر نه کا
لکه تش وهم دَ خوب هومره په یاد وی
ته چه هومره ناز دَ عمر په بقا کړے
کړیال نه وینے هر دم چه په فریاد وی
ناز و فخر په یاری دَ اقبال مکړه
دائم کله څوک له بخته په مراد وی
څوک به څه په دا فانی ریاض خوښی کا
که یو گل یے هویدا اغزی هشتاد وی
دا فانی عیشونه هیڅ طفل قریب ده
دَ هر نوش سره لښتر و نیم هفتاد وی
ته هاله ژړاله بخته کړه درویشه
شهریار که همیشه صاحب دښاد وی
په اسرار چه دَ جرس دَ شور بوهیږی
هغه کس به تل مشغول دَ کوچ په زاد وی

تیر و بیر به دَ هیچا په کوشش نه شی
هغه کار چه رسیدلے په میعاد وی

# اے هجری چه ستا وئیل تاثیر نه کا
# هغه زړه به د پیر شد یه لکه فولادوی

چه دِ عشق ایښے زما په زړه بنیاد دے
همیشه راته حاضر که په هیواد دے
په سر تامات کړو له قصدهٔ تو ے پیر
په قاضی کړے لما رقیب فریاد دے
په حجاب که دِ قدرت دُ نور و نشته
چه دِ ستر ما توی دَ صبا باد دے
مرصّع سیس پول دِ ایښے په تندی دے
بل افسر یے خجل کړے دَ قباد دے
په رخسار دِ خړ که نجه دَ طرّے ده
یا ختلے په کاغذ دَ کاتب صاد دے
دَ سپین مخ په خوے دِ وصله جار یه ده
که هندو دَ شیر طلب کا من سراد دے
دَ رخ قدر دِ سلیمان تور دِ خطونه
یا میری په منځ مثصفت چه یے معتاد دے
ما تو زلفو دِ دَ لنر کلونه او کړل
په هنر دِ و زینت و کړے داد دے

دَ تیکے مچلی دِ بنوری پرے خبریم
ذکر خیر یے دَ بنکلی مخ اوراد دے

هلالونه دِ محراب خال دِ زاهد شه
شنه قبا سجده کوی په دُعا یاد دے
کله کله په باغ ورشی چمن زر کړی
رنګ دِ ګل وته زر او بخښی جو آد دے

په ناوک دَ بڼو زړه دَ رو هی وُلے
دَ ستم سبق دِ لو ستے په اُستاد دے

که بنه مخ وَته دِ کورم رشک دَ یوح دے
نازک تن یې لطیف هسې لکه روح دے
دَ مخ زیب یې هیڅ محتاج دَصفت نه دے
دَجهان په ښائسته وُکښ ممدوح دے
دَښائست بیان یې نور مکړه خاطره!
څه صفت دَ هغه حال کړه چه وضوح دے
له هیچا مِ په دُنیا مینه اونکړه
څو یې تاب دَعشق زما په مخ مفتوح دے
زه به حال دَخاطر څه وایم وچا ته
چه یې درد دَعشق په دهرکښ مشروح دے
بنه چه مینے یې آهو کړمه له خلقو
په دُنیا کښ میں یار زما فتوح دے
دَدوزخ دَ عذاب هور دَ مردودانو
په دُنیا دَ هغو بجزه چه مجروح دے
سرتر پایه چه یې گورم حیرانی ده
عجب خیز هویدا کړے پاک صبوح دے
دَوصال مرهم پرے کیږده چه صفا شی
په ناوکِ مِ دَ فرقت خاطر مجروح دے

ته یې قصد دَوژلو مکوه گـردونه
په چاره دَ هجر خود هجری مذبوح دے

په اندوه یې ولایت همیش فتور وی
هغه زړه چه آشنا پسې رنځور وی

خوب خندا به یې په ځوکیږی یارانو
هغه کس چه په حیات له یاره دور وی

که له یاره هجر سخت وایم باور کړه
تل وانه د روح له تنه په ضرور وی

شاید اوس یې هجر نوم کړو زمانیو
له ازله به یې نوم د اور تنور وی

که د عشق له غشی ژاړمه عیب مکړه
تل زخمی آهو په دشتو کښ ترهور وی

زه له یاره صبر څشکل کړم واعظه
قسمت لیک شه په ازل نن یې ظهور وی

د هغه یار له درباره صبر نه شی
چه د زلف حب یې د زړه په څته سجور وی

چه د عشق په لار یې نه وی رفتار کړے
که اسان گنی دا کار هغه معذور وی

هجری تش صورت نصیب په دکن بند کړو
په خدمت یې د یار زړه دائم حضور وی

تورے ستر کے دِ لهیب کا بنیوه کرے
بنا ئسته دِیره غره یےُ جفا کرے
په یوه نظر یےُ زړه لمانه یو وړ
دواړه ستر کے دِ جادو کا مقا مرے
دَ وفا وعده دِ نه وینم جا نی یےُ
تورے مه عواره پما لوړے ژورے
عاشقان دَ حُسن چا لیدَه بیغمه
دائم غواړی دَ ذلت لوئےُ کمرے
ستا دَ لبو خوا زه څه سره څخی کړم
ورته هیځ شیرین عسل تری شکرے
با د پلوُ لکه غُبار له سما دور کړو
ماه و نمرِ دِ هویدا ستوری لښکرے
تبسم دِ توره شپه روښنه ورځ کا
په لعلونو که بنکاره کړے ملغرے
چه نسیم دِ په شمیم زندهٔ ریاض کا
څه عجب که مړ ژوندے کړے په خبرے
دا بیسر موتی دِ بنوری اشارت کا
خیبر مه سیزه په اورمیُنه لړے
مواعظ زما دے پیر زه یےُ شاگردیم
مواعظ دِ کینے نه کا سره ورے

که له یاره سره دست و گریبان شی
دَ آوهی په زړه به نکړے غمه پرے

په ظاهر دَ فلك رنګ کوره زرغون دے
خو تاثیر یې دَ ګردش بو قلمون دے
هیڅ باور یې په قرار دَ چارو نشته
نوے مخ په دم پیدا کا دګر ګون دے
دا دارا په وینو سره دَ شام اوره دے
دَ صباح شفق هم دَ سکندر خون دے
دَ کسری تاج یې په زور راه سره کوز کړ
پرے ایستلے یې له تخته فریدون دے
ته چه نن دَ وفا طمعه کړے له دهره
دا فکر ونه دِ باطل عقل زبون دے
په نهاد که یې تاثیر دَ وفا نشته
واړه تخم دَ جفا پکښ معجون دے
دَ حرص تیغ دِ ناحق په غاړه کیښو
پرے غوڅ کړے دِ دَ صبر دَ آس ورون دے
نصیحت دَ ناصح کله پرے تاثیر کا
هغه زړه چه په هوا چار و مفتون دے
په کثرت دَ دُنیا فکر هرګز مکړه
که مذکور دِ آورید لے دَ قارون دے
تر دُنیا وګړی تیر نامه یې نشته
محبت نام زنده کړے دَ مجنون دے

هجری رخت دا قامت په جهان مه بږده
نن پیدا شوے په دُنیا صبا دِیُون دے

چه لیدلے مِ دَیار دَ مخ فروغ دے
که څوک کا دَ ماه صفت وایم دروغ دے
نه چه منعه کړے زما دَ یار له لوریه
ملامت نه یۓ واعظه زړه دِ دروغ دے
سینالُسته په دُنیا دیر کے یۓ نشته
ولے نن حُسن دَ یار په جهان طوغ دے
دَ محبت په بازار قدر دَ بند نشته
قیمت نه لری هرگز دیرینه دوغ دے
دَ واعظ وعظ سود نه بخښی هغه ته
په گردن کښ یۓ پروت دَ مینے یوغ دے
نور له وعظه ژبه اونیسه واعظه!
نصیحت ماته بتر تر بد اُروغ دے

چه لانه دی دَ هجران اندوه خوړلی
هجرَی زړه دِ دَ بهار ترخنکه شوغ دے

دَ دُنیا خونه دَ باد په مخ ایرے دی
پانُنده چارے هورے دا مسخرے دی
دا زیبا خهرے چه وینے په دُنیا کښ
نن خندا کا لکه گُل صبا خورے دی
زړه پرے مه تړه هرگز که هلک نه یے
بودیے نشته دَ فانی حُباب دیرے دی
تش هوس یا خام اُمید یا توهم دے
یا په خوب کین بے وفا ښُکلے خهرے دی
چه بیدار شول په دا دار دَ مسافرو
دَ هغو سرته دَ مرگ تورے تیرے دی
ستا اصلی وطن هورے دے مسافره
په ناحق دِ زړه دَلے کړے اسرے دی
هغه وارَه په ارمان له دُنیا لاړه
چه یے نسه دلے پا تو مُنارے دی
ته له مرگه هومره ډارپه کوم سبب یے
دا چه لاړه له دُنیا هسه هورے دی
بوالعجب کاروانه هرنفس پیدا کا
دَ دے شنه سپهر هسے رنګ پیرے دی
چه په مهر یے ماښی چاته عطا کړے
له بیداده یے هغه ماښه سپیرے دی

هجری لورے دَ بنادی په جهان نشته
هر طرف چه غوږ کوے دَ غم سورے دی

چه یې نن فروغ دَ مخ رشک دَ چراغ دے
په اتش یې دَ عشق سر دَ زړونو داغ دے

نه یې رنګ و بُو دَ مشک په زُلفو لړی
نه یې ګُل مثال په حُسن دَ هیڅ باغ دے

چه یې سیال په دهوک دَ حُسن نشته
تر ګردون یې حُکه هسک دَ سر دماغ دے

خال یې هسې په عارض بانډِ جلوه کا
ګویا چا ایښے په ګُل وزر دَ ذاغ دے

امتناع له میو نن مکړه واعظه
دَ بهار نسیم زر کړے مخ دَ راغ دے

زه یې څه شکل معطل په لاس کښې پریږدم
چه ساقي راته نیولے ډک ایاغ دے

ګردوت نوے مخ په هر نفس پیدا کا
غنیمت ګڼه دا وار چه دَ فراغ دے

په ارمان وکړی تیر شوله جهان نه
په هیڅ لوري یې اثر نه یې سُوراغ دے

چه هر دم یې غم دَ یار په زړه څرخیږی
بیا پوره همه ګُل هجرۍ ته کاغ دے

دوارہ شونډے دِ پہ خوند ویم حلوا دی
نہ غلط شوم ستا پہ سر کوچہ اولا دی
دوہ عارض دِ مشابہ ویم پہ سیبو
نہ بیشکہ دا دروغ ترے مصفّا دی
دوہ آهو دَ آهو کلہ هومرہ زیب کا
صد هزار ځلہ ترے ښکلے ستر ګے ستا دی
رنګ وبوئی دَ مینکو دِیر کے یئے نښتہ
ولے ستا ځنو تہ سهل تر ګیاہ دی
سپین ګوهر دَ نمر پہ سر کہ هر څو زیب کا
دُرّ و لعل ستا مولا هغہ لالا دی
دوہ وُمنګو تہ دِ څہ شکل نقرہ وایم
چہ پہ څو مرتبے سپین تر سپین والا دی
پہ کاغذ وسہ خوشخط مدونہ ویم
ترے دوہ وُرو ځے صد هزار ځلہ زیبا دی
دَ تیکے موتی دِ بل رنګہ زینت کا
بنالسُتہ کہ هر څو ستوری دَ سما دی

ترهر څہ هجری خوږ ے ګنی دلبرے
لہ ازلہ چہ نازل پہ دا دُنیا دی

که نصیب بنده بند کړے په دکن دے
دامن گیر یئ همیشه عشق دَ وطن دے
سبا دی کاخه ته عالم وائی خبر نه یم
تل زړا زما ریاض غم م چمن دے
چه دَ عشق په توره مړ کفن یئ نشته
کله روغ دَ پاک شهید لوے کفن دے
چه زما زړه یئ بندی شه په کوهی کښ
همیشه راته په یاد هغه ذقن دے
دَ رضا په لوری خه شکله یون اوکړم
چه تړخت م چاپیره دَ رزق رسن دے
ما به خه شکله طبیب دَ وصال روغ کا
دَ فرقت داغ م دَ زړه په سر کهن دے

دَ زړه باز یے ستل دَ روه په زمکه کرځی
که هجری په دکن ناست خالی بدن دے

هر بشر چه سور دَ عقل په سمند وی
په تودو سړو نه غم کا نه خورسند وی
هر ساعت دَ نیک و بد چه په چاورشی
نه بنوه شی لکه باد نه په څه بند وی
دَ دُنیا په چارو پوه کله باور کا
مګر کا هغه جاهل چه خودپسند وی
هیڅ باور په حیات نه تونبه اخله
څوک خبر نه وی هر کز چه عمُر چند وی
بیهوده طمعه نادان له سوده پس کا
دانادل ته دَ هجُولی موت پند وی
سیاه دل ته دَ بنو پند لکه ګناه پرشی
بختور ته دَ بهبود خبرے قند وی

هجرَی هرچه پیروی کا دَ نیکانو
په دوه داره به بیشکه ارجمند وی

غره مشه په وصال پسې بېلتون دے
چه لښکر ے دَ موت ګرځي څه ژوندون دے

زرد و خشک به کاندِ خور دَ باد په مخ شي
نن بنادي په دا کښت مکره که زرغون دے

که تابوت دَ غلیم او وینې خوښ مشه
نهایت په دغه لار دَ هر چا یون دے

هر جاهل چه ستیزه کاله نیکا نو
وایه خوار به شي آخر بخت یې نګون دے

که ته زنګ دَ شک په زړه لرې نادانه
لومې شاهد په دا قصه حال دَ قارون دے

په تور زړه کله تاثیر کاندِ پند ونه
جاهد زنګ دَ حبشي وعظ یې صابون دے

نادان څو کالکه ستور فکر یې نشته
دَ دانا خو اره همه دَ ځیګر خون دے

دَ عشق نام به یې باقي وي تر قیامته
که تیر شوے تر دُنیا وار دَ مجنون دے

زه دَ یار له عشقه څرته ګریز او کړم
چه داغ کړے م دَ زړه دَ اس پتون دے

نن دِ پند څګه تاثیر نه کا واعظه!
ما دَ عشق سبق په زړه کېښلے پرون دے

دَ هجران غمونو زور هسې پردیس کړ
چه حدقه همیشه پروت په رنګ دَ لون دے

## په اشعار یئے دَ پښتو فارسی تیرے کا
## که هجرؔی په ذات ختک دَ روه پښتون دے

چه پیدا په دا فنا هغه څهرے شوے
دَ گردون چرے یئے حلق لره تیرے شوے!
ډیرے بنے څهرے سپهر پرورش کړے
عاقبت دَ تور لحد خاورے ایرے شوے
دَ ژوندون مُدّت مثال په نو زخه نه دے
نمو نه یئے دَ بادی حُباب ډیرے شوے
په انگن دَ چا آواز دَ ښادئ اوشه
چه یئے نه په غوږ بیا دَ غم سورے شوے
چا چه نه کیښوے خیرے له کبره سمے
په دا زمکه تار په تار هغه خیرے شوے
ناشه اوگوره ما نحه دَ هغه تیرو
سر په بشکته څرنګ توئے په آیرے شوے
زه بنده و دالحمد شکل په دُنیا کړم
و دا نحه دَ ملونو وینم چه خورے شوے
دَ وصال په میوُمست بیغمه ناست وم
ترما تیرے دَ هجران دَ غم پرے شوے
دَ ښادئ وار یه قائم په چا پرے نه پردی
چه حسد لره پیدا دَ چرخ پیرے شوے

دَ هیچا دانش آگاه په اسرار نه شه
دَ هُښیارو په حیرت او په زهرے شوے
دَ خالق اسره پردیس لره کافی ده
که خورے یے دَ فانی دُنیا اسرے شوے

**هجرؔی نیت دو دانی په دُنیا مکړه !**
**گوره خونے دَ یارانو چه میرے شوے**

---

په دا څو دمه حیات که م یار یار وی
په درست ښهر به زما کار کار وی
مکړه مکړه یوځل بیا په مراد راشه
ستا داهجر به م څو په زړه بار بار وی
مه وے مه وے را تعین دَ عشق غمونه
تل دَ زړه په سر ولاړ زغ دَ مار مار وی
راشه راشه لتا در و می قرار نشته
په اطلس کښ ارغ بزدم راته خار خار وی
دیره دیره بنا نسته ده لا تیرے کا
چه یے زُلفے په ښه مخ بانډِ تار تار وی
حُنه حُنه یار مجنون غونډِ مجنون کا
که دَ هر دلبر لیلے غونډِ هار هار وی

بیا بیا کله تیر ساعت مُراجعت کا
دَ هر کار محل یے کښیلے په وار وار وی

دور دور دَخوانی چه واریږ تیر شی
نور که خوئ دَ ژبی کا همه عار عار وی
نشته نشته جواب کوئ دَ دے ویلو
که شاعر په گُفتار صد هزار هزار وی
له بنو بنو میږو څوک چه فلک بیل کا
په ژړا به دَ بنده غونډِ نا دزار وی

دَ هجری هغه یار یار دے په داؤدانه
چه قمیص یې په سینه باندِ لار لار وی

دَ مائین له زُلفو بوئ راوړے باد دے
څومنت یې پما ایښی تل م یاد دے
ظاهری تنه م روغه زړه م لوټ کړ
دَ مخفی رنځه طبیب ته څه فریاد دے
شب و روز یې خالی نه یمه له فکره
سوزنده آتش دکن یار په هواد دے
بس جفا کوے په خوږو ترس دِ نشی
په سینه کښ دِ زړه کاڼے که فولاد دے
چه جواب دَ وفا نه مومی دیباره
په لښو م اچوی دا ئے مراد دے

دَ رقیب له غمازیو بنه خبر شوم
که له دره یې بیرون شے زما یاد دے

دَ درد منو یه آه نه لوړی له بیخه
په وصال کښ دَ هجرت هسې بنیاد دے
هجر تل په ملاقات پسې وصلی دے
تخلص دَ غزل پس چه یې مُعتاد دے
طبیعت مِ ازمیۀ همسری نه ده
دا غزل دَ شاگردی په در اُستاد دے

روهی ډیر دَ یار له جوره کِلهٔ مکړهٔ
له دغه ستمه چا موندلے داد دے

خوږم ایښے په خاطر دَ هجران بار دے
له وصاله مِ نصیب تش انتظار دے
دَ وصال تریاق را وُبخښه مینه
هر نفس مِ زړه چیچی هجر دِ مار دے
چه شراب دَ هجر څښے بیغمه مه شه
خو به درشی البته هجر خُمار دے
جُدائیٔ په مرگ له یاره ارمان نه وی
چه ژوندَه څښے جُدا په ځان یے زار دے
چه هرگز یاری له چا په دُنیا نه کا
په دُنیا کښ سړی ډیر ملنگ مِ یار دے

خود اشین فلک دَوروَنه کا په زمکه
په ژړا یې له نیرنگه هرجا ندار دے

نه یې یو ساعت قرار ځان روا کړ
نه عالم دَ ده له دوره په قرار دے
دُنیا ځکه لبالب ده له افسوسه
چه آخر دَ خزان وار اول بهار دے
هیڅ باوریې په بقا دَ بنادی نشته
همه غم لره پیدا دَ ارمان دار دے
زه خټک په بیجاپور اشنا په روه دے
ولایت مې سره اوړ دَ هند وبار دے

چه هجرَی غوندې جُدا وی له یارانو
که بادشاه شی په دکن عمر یې خوار دے

په دُنیا کښ عجب خیزوانی هجران دے
چه سبب دَ وصال دے کړے یزدان دے
که کافر له مرګ ډار کا مناسب دے
ډار به ولے کا هغه چه مُسلمان دے
که په مرګ یې له فانی داره روان کا
په بدل یې جنت ورکا تل بُستان دے
دا فانی دولت ظاهر بقا یې نشته
که جنت را کړے مولا چه تل ودان دے

دَ ناپاکو ځائے هرګز په جنت نشته
په دا قول مې شاهد جمع فرقان دے

بهشت ځائے دَ هغو پاکو دے بیشکه
چه په دین یے دَ نبیؐ ثابتِ ایمان دے
ورځ او شپه دَ عُمر هسے کُذرکاندې
لکه سیند چه قرار نه کاندې روان دے
ته طلب دَ دین کوه غم دَ نان مکړه
په روزۍ هغه پوره چه ضِمان دے
دَ باقي خونے زینت په بنه عمل کړه
وفا نه لري دُنیا ځائے دَ ارمان دے
هر نصفِ بیت یے دَ دے غزل موزون کړ
په شل دوه حرفه دَ عقل په میزان دے

هجرَي مشه نا اُمید که گنهګار یے
البته به انعام او کا مهربان دے

هغه یار چه یې مخ رشک دَمهر و ماه دے
په زنې یې اوس بنکاره دَخطِ سیاه دے
تورې زُلفې یې زندی زړونه پرېنیسی
دَهوش بند لره یې جوړ دَزنې چاه دے
دَبیسر گوهر یې تا خت لره تل سنوري
خال یې لا په چا زړه سوے نه کاجانگاه دے
دَجهان دلبر یې واړه نوکران دي
نن زما په یار قائم دَحُسن گاه دے
که له جوره یې فریاد کړم وائي چپ شه
ورځ دَ زړه ده دَعاشق دا یې بیگاه دے
چه طلب دَبوسے کړم وعده صبا کا
زه تر کومه پسې ځم عُمر کوتاه دے
یاره نور برات دَکار په وعده مکړه
ورځ دَعُمر په آخر شوله بیگاه دے
لکه ته په تخت دَعمر بلهائی کړے
ستا اشنا هم په جهان دَنظم شاه دے
دَوصال په تُوره سر دَهجران غوځ شه
همیشه دَ دے دولت هجری خواه دے

راشه راشه دَدیدن ارمان به یوسی
دَهجری صورت سوار په اس دَساه دے

---

هو مره څه لړه عاشقه په آزار یې
چه له چرخه هم ظالمه په داکار یې
تل به دا خوبي پتا نه وي قائمه
که مغروره دَ خپل حُسن په بازار یې
ته هم ځار اوکړه دَ دهر له نیرنګه
اے چه تل مِ په آزار لکه ادوار یې
دا جزا به پیر دَ ورځو صبا در کا
ته که نن آفت زمانیل و نهار یې
دَ زمان خزان خوشته غافله مشه
نن هر څو که زیب آوره تر ګلزار یې
کوم بهار په چمن دیر وي تر زمانه
ته چه هسے شان غره پخپل بهار یې
بے زیوره دِ مخ او رجهان دِ اوسو
بیا په کوم غرض قاصده دستکار یې
سیال نشته ستا دَ مخ په ولایت کښ
تر ښتا لو هم تیرے دَ هند و بار یې
نور همه خو لجه لرے قباحت دا دے
چه په خولۍ همه جفا لکه روزګار یې
دَ وصال دَ میو نوش طرب افزا وي
هجره ته وړپسے بد لکه خمار یې

هجرَی لو ساعت خاطر قرار در نکړ
څو دَ یار دَ عشق په آس باندِ سوار یې

هغه زړه چه په اشنا پسې خوږیږی
که صاحب یې شهد خوری کله خوږیږی
پوخ طبیب په هغه زخم دارو نه ږدی
چه یې رو دَ وینو سیل غوندِ خوږیږی
دَ هرچا دَحیات ورځې قلمی دی
هرساعت چه کُذرد کا عُمر لږیږی
څوبه ناز په عُمر کړې فکر دَ کوچ کړه
کړیال مه کنه یاوه چه تل غږیږی
که هر څو یې څخ دَعیش په لورسم کړم
زړه مې ځکه تل غمو نوته کږیږی
پرولی یاران چه یې ماسره مجلس وه
نن یې تن په تورو خاورو کښ ریژیږی

دَهجری ځیګر په نیش دَ هجر غوڅ شه
په هر لور یې وینې موج کاندی بهیږی

داچه وایم باور او کړه واړه درد دے
ګنه زړهٔ مِ دَ اشعار له مینے فرد دے
زړه که غوارم موندے نشی په سینه کښ
پرے تو ده هسے دَ یار دَ هجران ګرد دے
ماچه جور دَ هجران په ستر ګو او لید
دَ زړه سرِمِ دَ همه یادیو سرد دے
چه دَ عشق مار غرمِ سیورے په سراو کړ
نورمِ تن لکه هلال په ګونه زرد دے
آرائش دَجهان هیڅ باور پرے مه کړه
چه یےٗ دا زینت تر شا کړ وهغه مرد دے
دَ دونی ملنګه خانه لار دغه ده
بیهوده خسرو غره په تاج وجرد دے
ملک په ملک ښهر په ښهر هجرؔی بیائیٗ
په ګردن کښ یےٗ زنځیر دَ آب وخورد دے

---

طالبان دَ دُنیا واړه کودکان دی
بیهوده په مینه ډوب دَ این وآن دی
همیشه لکه طفلان هوس پرے کاندی
دُنیوی اشیا ګویا خاکی فیلان دی
خاکی فیل چه نفعه نه بخښی کودک ته
په دا قول شاهد واړه عاقلان دی

ناکهانه یې سر تور موت جُدا کا
ځنې پاتو شی رحتونه که اسپان دی
ژوندون کله وفا کا له زمانیو
په لږ عمُر عبث گُل غونډِ خندان دی
ماچه این و آن دَ دور تجربه کړل
په قرار یې باور مکړه گُذران دی
چه له مکر یې خبر ورته یې شا کړه
په عشوه یې فریفته همه نادان دی
ته چه فخر په مال کړې زمانه خاندی
وائی تا غونډِ تېر کلی ماچندان دی
راشه ناز دَ زملنے په یار مه کړه
څو یې بنه ترتا بیولی په ارمان دی
هیڅ تاثیر دَ غافلانو په زړو نه شی
عاقلانو ته عبرت سلف مردان دی
په ډول ډول په زمکه ځے شرم دِ نه شی
چه په لس کښ یې پراته ستا بزرگان دی

هجری پښه په ادب بردا ځې به ولښ شی
تر قدم لاندِ اوده همه یاران دی

پسران دَ آدمٔ واړه غریبان دی
وارد شوی په دادشته دَ فغان دی
نواله یې دَ آرام تناول نه کړه
سرگشته دائمٔ په دور دَ اسمان دی
حقیقت یې مشابه په حال دَ گوې دے
دَ فلک دوړو نه تل لکه چوگان دی
دَ قرار ساعت او نه ویني په سترگو
په هرلور چه یې نصیب پسے روان دی
کیفیت یې دَ احوال پوشیدهٔ نه دے
په دوه ملکه سرگشته مسافران دی
چه په مخ دَ زمکے شته زندهٔ یې بولی
هغه تیر تر زمکے لاندِ مردگان دی
پرون راغله برهنه برهنه لاړل!
ننَ همه دَ تورو خاورو په زندان دی
یوې نه وړ څه حاصل له مال وملکه
دَ دُنیا په غرور واړه پشیمان دی
داوگړی چه میلمه دی په جهان کښ
تن په تن په لمبو سوی دَ هجران دی
هیڅ بشر به هسے نه وی مور زوولے
چه یې نه په زړه داغونه دارمان دی

قباحت یې دَ حال دیر بیان یې نه شی
واړه غم لړه زوولی آدمیان دی

چه احوال په دامنوال دَ جهـا نیو
هرچه فخر په دُنیا کا غافلان دی

دَجهان چارے سراب وفایئ نشته
په سراب عبث غلط لکه عطشان دی

هجرؔی عمر و دولت باد بقـایئ نشته
نازهغه کاندی په داچه کودکان دی

---

چه لیدهٔ شی په دید وکښ عمر دا دے
بیگانه غوندِ گذر کا که اشنا دے

په یاری یئ باور مکوه نادانه
وفا نه لری په رب کو لا بقا دے

که هرڅو عمر عزیز بدل یئ نشته
ولے نه آرزی په جو چه بیوفا دے

لا پرون مهر دَ عمر په مشرق وُه
نن لیدهٔ شی په مغرب په غزغرا دے

داشتاب چه ماله عمره تجربه کړ
هسے تاوُ په تله کښ کله دَصبا دے

نهایت به جام دَ هجر تناول کا
هر بشر چه پیدا شوے په دُنیا دے

په دا څو کاهه بقا چه بے وفـا ده
هرچه قدر دَ یار نه لری خطا دے

چه اول تر گل فدا پسے یے چپ کا
که په قدر دَ یار پوه والیُ بورا دے

هجری فخر په یاری دَ زمان مه کړه
داعمل په آخر بینو ناروا دے

---

مخ یےُ هسے دَ خالق په قدرت صاف دے
چه یےُ کړے تر قمر دَ تیری لاف دے
په صفحه یےُ دَ سپین مخ زلفے کږے کږے
هر یو خم یےُ مشخص دَ مښکو کاف دے
دَ قد مثل یےُ الف دَ خولے یےُ نون شه
دَ کاکل رنګ یےُ مثال په سر دَ قاف دے
باد یےُ بوئیُ دَ زلفو وړه ختنو دَرود وے
ما وے چاکړه پاره دَ نافو ناف دے
شے او کین یےُ تورے زلفے په مخ ځانګی
هر ساعت یےُ په عشاقو اعتصاف دے
دَ کردار جزا به ورکړه عاشقانو
وے جرم یےُ دَ شاه په روئے معاف دے
هرګز تیر دَ بل دلبر په کوڅه نه یم
چه مِ کړے دَ اشنا دَ در طواف دے

همیشه یےُ دَ جناب په خاورو رغړم
هم هغه زما بستر هم مِ لحاف دے

ځنې ځنې راست عاشق لکه واَمق وی
دَ عشق لاف اکثر وکړې په کذاف دے

چه هجری آغاز دَ شعر گفتگوئے کړ
زرخریدې دَ گُفتار دَ چمن واف دے

---

دَ شاعر شعر یې اور وته علف دے
ځو بنولے م دَ نظم تیغ په کف دے
دَ خبرو په ژوبین به یې سورے کړم
که م خصم پټ په ډال لکه کشف دے
روشن فکر م غوّاصِ گوهر اوکاږی
دَ زړه کور م دَ ذاتی دُر وصدف دے
چاچه نه وی په دُنیا گوهر لید لے
تر گوهر ولا بهتر ورته خذف دے
یو نفس یې دَ عیش غوار م مونده نشی
گویا نن یې له دُنیا وجود تلف دے
زه طلب دَ هوس کړم چه هرگز نه وه
ځو قائم په دا جهان چرخِ حزف دے
هر طرف چه نظر کړم شور وغوغا ده
نه زده چاچه یې قرار په کوم طرف دے

خو لبنکر دَ هجر کوز زمانه په زړه شته
شکسته م دَ بنادیه دَ جیش صف دے

## ما هجری ته دَ یار هجر جهان اورکړ
## دزړه سودم څه خوږغ دَ نایودی دے

دَ هر چا چه په نصیب دَ ښادئه وارشی
کوس غریب یۓ بے موجبه گنهگارشی
گریبان یه دَ سړی له جوره بړه کا
په اُخوا که حال له کوسه استفسارشی
مرلرگے دَ رباب هله ژنده بوله
په صورت چه یۓ گویا دَ کده ے تارشی
دم په دم یۓ گوښمالی کا بے گناهه
هر ساعت چه دَ ښادئه مجلس تیارشی
که له جوره یۓ غاو اوکا ربا بونه
هو مطرب به په آخر هیزم دَ نارشی
هر هوس چه فخ دَ چاکره ښکاره کا
په ښوجونو یۓ انگن همه گلزارشی
جونه خپل موجونه کاندی په سندرو
په غضب دوه صورتونه گرفتارشی
یو منگے بیچاره غل کاندی دلبرے
خوله یۓ هرنفس وهلے په پیزارشی

بل نصیب هومره څیره دَ چا مه شه
لکه جور دَ ده په وُنو په رُخسار شی

دَ کشت تخم په خوله پته خزاره کُم کا
دَ وکړي غل طوطا په تش چغار شي
یو هزار جُرمونه کا سزاےُ نه شي
په توره يےُ بیگناهه بشر خوار شي
هره چار دَ جهان کجه ده له عدله
چه لیدلے دَ چشمانو په انوار شي
دَ کردار اسرار يےُ چا نه دے موندلے
مګر پس له مرګه اولیه دا اسرار شي

عدالت دا هسے نه وي چه زاغ خاندي
بے موجبه په آزار هجري هزار شي

---

طلب کا نهٔ دَ نیکۍ وار دَ طلب دے
که دولت دَ پاک جنت دَ چا مطلب دے
دَ خاکی داره میلمه په ادب اوسه
خاصیت دَ میلمانه شرم وادب دے
دا جهان خُونه دَ غم هوس پرے مکړه
په عمل يےُ خپلوه وړاندِ طرب دے
دَ مراد پرے دِ نه پرېږدی ګُذر ته
چا پیره دِ کړي کوی حرص دِ ډب دے
دَ خنّاس مکر کوهے پکښ پرے نه وځےُ
ستا دَ طمعے آس هر کوره بدجلب دے

تاثیر څه که پتا نه کا دا خبره
چه دِ مهر په ذره کښېنلے دَ قصب دے

دَ هجرؔی له کفر و شرکه بېزاری ده
اُمتی دَ پاک نبیؐ بنده دَ رب دے

دریغه دریغه بېچاره عاشق ذباب وے
چه گستاخ یئے ناست د لبو په قند آب وے
دا دولت که موجود نه هم غنیمت وه
که یئے تل په دریار پروت لکه کلاب وے
څیر کا ته به یئے بناسُت و ته ممکن وو
کشکے نُور یئے دَ مخ مهر یا مهتاب وے
دا بازار به یئے دَ نور په جهان نه وه
په اُورو که همیش پټ مخ دَ آفتاب وے
دَ یار مخ په هله سم وه له خورشید که
که یئے نُور دَ بناسُت منع په نقاب وے
چا به مښک عنبر هرگز ورته اونه وے
که دَ څنو رنګ یئے شین لکه سحاب وے
دَ هجران غم به دا هومره شوخی نه کړه
که موجود راته کښے چنګ و رباب وے
که ډرامِ به انداز دَ ذره دَ سوز وے
یوه ستر که سینه دَ تنګ بله چناب وے

دَ هجرِیٓ خوښی که کړے د دوران دور
دَ دُنیا کور یےُ دائمُ دَ یار جناب وے

پہ دُنیا دَ هغو زړه دائِم کباب وی
چہ اخته دَ بد خصلت یار پہ عذاب وی
تر دا سخت عذاب بل مہ کړه پہ دور
چہ پہ هجره دَچا یار مختلف داب وی
کامرانی پہ دے جهان هغه سړے کا
چہ یےُ یار پہ رضا جوړ پوے پہ حساب وی
که حلوا کباب موجود وی، پہ مجلس کښی
پیاله هم ورسره جوړه دَ شراب وی
زیر کلونه پہ ریاض کښ میلمانه وی
پہ آواز ورسره مل چنګ ورباب وی
دا همه یہ هومره زړه دَچا خوښ نه کا
لکه خوښ دَ موافق یار پہ جواب وی
بنديوان یےُ هجرِیٓ څوک پہ جهان مشه
دَ بد یار صُحبت دَ زړه دَ پښو طناب وی

چه یې سِحر بولي خوک شعر زما دے
نور دِ وا ړو شِعر شِعر سِحر دا دے
که باور دِ په دا نه شي پاسه کوره
زما هر غزل شاهد په دا دعوا دے
دا زما سِحر حلال دے باور اوکړه
نور همه سحر حرام چه په دُنیا دے
هسے نه چه سحر کړم په خپله ژبه
تر پښتو م دَ فارسي شعر والا دے
ار زاني شعر م اولیده په سترګو
ډیر م شعر هم لیدلے دَ مرزا دے
یو په یو یې حال همه راته ظاهر شه
هر افغان چه شعر کړے جابجا دے
که هر څو م سیال دَ شعر لیده نه شي
ولے زه طفل مکتب په در اُستنا دے
دَ لړي دَ بری کار نشته په میان کښ
دَ بابا اشعار زما دا دَ بابا دے
که هزار بنا خونه بیل اصل خو یو وی
په دا کار هغه پوهیږي چه دانا دے
پیدائش همه دَ رب سبب م دے شه
که بنده په دا ظاهر صورت جُدا دے

زه هجري به یې دَ کوم هنر صفت کړم
ژغ یې خود دَ خوبي تیر لا تر مسما دے

په څو قومه باور مکوه ستکان دی
قول و بول یې صادق نه دی کاذبان دی
قول و بول دَ پښتانه دَ اوبو ځنځ دے
ځینې لا په جرګه سپک ترګل افغان دی
دَ وطن زمکه مثال په لویه د شسته
پکښې کرځي هم رویاه هم شغالان دی
په تقلید دَ حیا نوم په ژبه اخلی
ولے نه لری هیڅ شرم بے شرمان دی
حسن خیل له ننګ و شرمه خبر نه دی
خودَ نس په حرص دوب لکه کاوان دی
میرداد خیل په کوم مذهب دی خبر نه یم
نه مسلم نه رافضی نه کافران دی
چه اُمید کا ناری وفا له غلامانو
هغه واره لایعقل بے شعوران دی
یو دوران په خولې بتر کنه ترسپیوُ
بل دمان همه له خیرہ قلبتان دی
دمان واړه وفا نه لری بے شکه
دَ سرائے لا قحبه مادر کُسته زنان دی
دا تو پړ که غلوُل کا لکه ستوړے
دَ پاتی خوئے همه کوته سکان دی

خو دایم په دوئ ثابت مردان یې بوله
هرچه مکرو ریو و رنګ لری زنان دی

ما هجری چه دَ جهان نندارہ اوکړه
ترصادقو یوپه سل کاذب کیدیان دی

له چشمانو دِ پوروړے سُکرمل دے
مخ دِلا تروږیرخندان تر نوی گُل دے
په صفحه یے هرگز شان دَ شکن نشته
چه لیدة شی په جَبه خم دَ کاکل دے
که دَ ځنهیو زیب دِ نه دے مخجل کړے
په خلوت دَ کوهي پټ وَلے سُنبل دے
ثمنیه زیور دَ څو کُلونو پیرے
چه کمین دِ حساب کړے په چارکل دے
عشق دِ هسے تل په ضد وی له قرارة
لکه ذات دَ پښتانه نه دَ مُغل دے
یار دِ هسے په پارس دَ مینے زر کړ
گویا لون له ده ذرے هریاول دے
په خوږه ژبه دِ زړونه د بوده کړل
په دا کار دِ سحر وروستو دَ بابل دے
تاویشتلے فریاد کله په رضا کا
محبت یے بیا په زړه ایښے غلغل دے

هرستم په مین کړه چاره یے نشته
حکایت دَ غمازه فهم کړه چُغل دے

که تمیز دَ هجرَي نظم په معنو کړے
هر غزل یې په ریار شک دَ بُلبل دے

له وفا بنا اَلَست په څه بهسے آزار دے
چه یې تل وفا ته شا دَ جفا یار دے
دَ انصفت ولیش چه کیده حُسن اُوده وُه
نن همیش ځکه وقتل ته بیدار دے
عجب شے خاوند پیدا کړو په داد وړ
چه دائم یې محبت دَ زړو په ښکار دے
دَ زړه کورِم ځکه تش وی له هوسه
چه دَ هجر هر نفس باندِ ناتار دے
پرهار ونه دَ زړه مه شماره طبیبه
له بنو یې حال دَ دل وارو اظهار دے
یو په یو یې بانه اوشماره چه څو دی
هر مژه یې په تخته کړے پرهار دے
په رضا یې بے رضا ور پسے درومی
تن بیوسه رعیت زړه شهریار دے
په دُکان دَ ښکلو رو دَ صورت نشته
وارهٔ زړه سوداکوی صاحب مدار دے

دَ وفا له کسبه سُود دَ هجرَي نشته
چه یې دود دَ جفا تل دَ مینے کار دے

چه دَ مانکې لړه دِ جوړه په جاده شي
تر زینت یې دَ فلک جاده ساده شي

صفا مخ دِ نڅرګدې نه کوړم له ترسه
چرې نه دَ بنو ساڼې پرې خاریده شي

ستا دَ چشمو شکر نه بخښي مین ته
که باده همیشه څښله په باده شي

هغه دم پیما شیرین وي تر بهشته
چه دا خاوړې ستا دَ غولي وساده شي

که ساعت دِ له درباره کناره شم
راته سل زره دوزخه آماده شي

دَ واعظ منع زما له سنګلو څه ده
لکه اور دَ پهش له دمه زیاده شي

هغه زړه چه مبتلا دي په دلبرو
نوره هیره دَ هښیارو قاعده شي

نام وننګ یې محبت له سره بیل کا
که اسیر یې په دا مونو شهزاده شي

دَ هجري شرف تردا په جهان نشته
که تر څټ یې مار دَ زلفو قلاده شي

---

په رُخسار دِ حبشي جوړ يه جوړ يه دی
بنده کړے يئے اصيل په ناچاری ه دی
په جهان دَ حُسن ته يئے تخت آرايه
ترخوبيه پورے دِ خِه دَ ملک پيریه دی
ستا دَ شونډو مثال څه کړمه په دور
دَ لاله تر پاڼو يئے ترے هم سرې ه دی
دَ زينت چړے يئے پرے زما مریه کړه
په مری ه دِ جوړ قطار خونی مری ه دی
په حلقه دَ زړونو بند زړونه رها کړ
عاشقان دِ په ځان شوی له یاری ه دی
استغنا جوړے رخصت دے دَ بُتانو
دَ عُشّاقو بخره آه ډیرے زاری ه دی
دَ زينت سرير دَ دوه دلبرو خپل کړ
پرستارے يئے دَ هند همه مهری ه دی
په رحمت به دَ هجری هغه پوهيږی
چه دَ هجر يئے په سر تیرے خواری ه دی
دَ عنبرو رنګ و بُوئ دِ دِ لفومات کړ
تر سُنبلو ډیرے تیرے په تری ه دی
چه يئے ستر کے ستا په ستر کو روبرو کړے
نور هغه همه بری له هُبنیاری ه دی

تر نیکه دِ لوو بړ کله لالیه دی
نه هغه دَ دُروو لړ نه دا محچلیه دی
هر طرف یې وروی په عاشقانو
په لمن یې اویزاندی گُل بزلیه دی
په سیمی لیچو دِ لنن کوتی لیده شی
نزاکت وته یې هیڅ دَ گُل کلیه دی
مښک عنبر دِ قدر نه لری دَ خنیو
نه کافور دِ تاله تنه دَ سیالیه دی
دَ بلیسر موتی دِ لُوت نه حرکت کا
لکه تول رهزن جرگه دَ خړخلیه دی
سُور بُلاق دَ سُور مغل دَ جور مل شه
عاشقان خسته کړه د دان کلیه دی
رنګ و بؤ یې ستاله مخه رعایت کړه
دَ چمن سوسن گُلاب که چنبیلیه دی
دا اُودی دِ حضور هسې رنگینه کړه
گویا تول هُنود راغلی دَ هولیه دی
تورې سترگې دِ زړه ربی په کتلو
په نظر کښ دِ ذاتی دَ جنگ کولیه دی
که میَن یې په حیات ځُنې گوښه شه
دَ بهار په سیر د دوی روهیلیه دی

هجری حُسن په روهی بُتانو مه کړه
تر نسبت یې دَ هند جُونه سهیلیه دی

ستا له خطه را معلوم مهر دِ سو پر دے
چه زخمی په او ښکو نه سلامت جوړ دے
مُند رج یې دواړه مخه په لیک نه دی
بل شاهد یې دا کوی چه لتا موړ دے
هیڅ نومی دِ په احوال دَ خسته نه شی
ذره دِ کا نړ په سینه کښ لا اکوړ دے
چه نسبت م په لباس کړے زهیر یږم
په رښتیا و ښیل کوه که همه مرور دے
که محیط یې دَ غضب لا پرے رافت کړ
همیشه درته عاشق په اخلاص جوړ دے
په بها یه دَ یار مخ خړ نڅ لیدے شی
نه یې بیه ډیر لکونه نه کروړ دے
واړه غم راته آسان که هجر نه وے
مُنعدم شه په رښتیا بتر ترے کوړ دے
نادان زړه یې دَ ختک په دکن خواړ
دَ بُتانو وطن روه خاصه بُتکوړ دے

زه هجری سیر په کومه سبزه اوکړم
نظرگاه م له فرقته همه روړ دے

مینٔ ځکه ستاله دیده شوریده شی
چه یو بدرچار هلال یئے په دیده شی
صف بانهٔ دِ ناوکی وروځۓ کمانه
هر ناوک یئے په سینه دَ یار سیده شی
بے یارځه دِ آرائش خو ښونه کاندی
هله تو به که وسمه هم پرے کشیده شی
دَ مشام کاسه به کان کا دَ عنبرو
که یو ځم دِ له زُلفینو بوئیده شی
که هر څو په نزاکت سروه نامی ده
په آسیب دَ باد کږه لکه لینده شی
که سایه دَ مارغه اوشی ستا په اوږه
څه عجب که یئے له وزنه خمیده شی
په سیالۍ دَجرأت نه کا ستاله قده
ګنه ښنه به یئے په تبر بُریده شی
څوک به مدح ستا دَ قد په څه روښ کا
په لیده یئے عقل خورد فهمیده شی
دَ سپین مخ تخته دِ هسے مُصفا ده
چه څهره دَ هر اشیاء پکښ لیده شی
نه مِ ښنه په سترګو کیږده زه حفظ کړم
خدائے دِ نه کا چه بانهٔ پرے خلیده شی

زیبائی دَجهان ختمه ستا په مخ ده
دَ لیلۓ تشه نامه ده آفریده شی

په رُتبه دَ عاشقو ځنې فائق يم
که هر څو مینه دَ قیس کوشیده شي
عنادل که دا غزل په غوږ وواوري
بندګان به دَ بنده زرخریده شي

**چه هجري دِ په خامه دَ لُخ صفت کښي**
**په بیاض بې سل بهاره رو ئیده شي**

---

چه تر زړه مِ دَ کړیت لښکر چاپیر شي
لا دَ آه کله خالي وي چه ترې تیر شي
په خاطر مِ دَ یار یاد هسې غالب شه
په هر شي چه نظر کړم دَده په څیر شي
غم دَ هجر هوش همه راځنې یوړه
په ژبان مِ ځکه ذکر تیرو بیر شي
دَ فرقت زهر مِ نوش دوا بې نشته
مګر سم بې په تریاق دَ وصل زیر شي
چه مهجور دولت دَ وصل په کنار کا
وار غم بې دَ نعمت په شکر هیر شي
دَ قلزم موجونو ولیستم له دوهه
په دا حال به مِ ګذاره څرنګ پیر شي

میړي کله په لامبو ووځي له ډوبه
مګر مل مِ په همت زیړ مې کستیر شي

دَ سپهر دورِ طول دَ محن شپه کړه
لا به کله هویدا دَ نمر نمیر شی
نن فلک هسے غصه کاله مهجوره
که دَ لیٔ دَ نبات او پیری کنه هیر شی
څوانحه بنه وفا دِ او کړله تر اوسه
نن مِ ستاله غدار نه فکر دیر شی
نور دَ کوچ خبرے نه کړه لکه توکے
رخت ترل دِ پما سخت لکه کل تیر شی

دَ معنو په ناوے یے غوښ دَ حجاب سپر کا
دَ هجرؔی خاطر خنجر کله شمشیر شی

---

چه په لار یے دَ وحدت ایښے قدم دے
وهغه ته غم بنا دی عیش یے غم دے
څو دَ شک په مقام کوځی غم به وینی
دَ یقین په ولایت یے نوم عدم دے
راشه پښه دَ صبر پاس په حرص کیږده
قناعت له عیشه ډک حزن یے کم دے
لاف الف غوندِ صورت دَ یقین راکوه
قلب دَ لام له دله او ته صنم دے
هرچه مُلک یے دَ مُوتُو په زُهد خپل که
نور یے عمر دَ حیات له ریه سم دے

بیهوده عمل دَ اُور ځنې فرار کا
ستا دَ عقل کیفیت لکه ضیغم دے
دَ لاهوت مارغه دِ بند کړلو په زاغو
پنچیل ځان دِ عدل کړے که ستم دے
من نشته دَ ناسوت له کیسه برو
مکو کړه شی په لاهوت بیځه یم دے
دَ تجرید کسب کوه شرف یے کوره
که دِ بلونټے په مشام دَ خردشم دے
الف ګکه سرفراز چه جریده شه
په هر لوری چه نقط بدن یے غم دے
شست وشوے دَ همت په زلال بویه
په صفحه دَ زړه صنم عشق دَ درم دے
قد مونه یے په لاس دَ یقین نیسه
هغه کس چه یے تر شا فانی قدم دے
چه عسل دَ دهر خورے زهر قبول کړه
دَ حلوا تباخ یے پُروا په نسم دے

په دا حال هجری خبر په اربعین شه
چه په تُوک شاکرِ فقیر ثانی دَ جم دے

له رندیٔ مِ متقی په زړه زهیر دے
واعظ لاړ زما له غمه تل په وير دے
څومِ سترګې دَ باور په نصیب واکړے
په او بومِ ورق وُ ړلے دَ تدبير دے
قیل وقالِ مِ دَ جهان همه تر شا کړ
تل صیقل په کدورت زما ضمير دے
وعاقل ته لاړ دَ سُود بنا یه زاهده
دیوانه نظر ګنړلے په تقدير دے
په مستیٔ مِ جامه څیرے دَ نشاط کړه
چه دائم په غم بنادیٔ کا زما پير دے
که انکارِ مِ دَ مستیٔ لرے باطله
بنه سندِ مِ په دعوا دَ پښتو زنځير دے
بنادیٔ غم په لوحه کښلې دَ هرچا دی
فکر مکړه چه ممکن یې ئې تغير دے
غایت بینوته ظاهر خطا په نه شی
رهیدړه چه دَ قضا له شُصته تیر دے
توکّلِ مِ وسیله بیغمه ناست یم
نه مِ عرض په خسرو نه مِ په میر دے

دَ انصاف طمعه یې نشته له دربار ه
که وَمه یې مرلشی غم یې وزیر دے

سرو بن یې لتوم پایان یې نشته
طُرفه جور یې پیشه کړې نن زګیر دے

هجری تل به له تا جنګ دَ فلک نه وي
عیش و غم یې په روسر لکه بهیر دے

---

زړه مې بس دَ یار کتو ته انتظار دے
دَ فرقت په ډېر اندوه کښې ګرفتار دے
ناصحا که افضل کا نه به یې ورمه
که په رګ دَ آزادګل ولے سردار دے
هغه یار که کشش کا چاره مې نشته
په ستم یې شګفته یم چه نامدار دے
دَ شمشیر غم مې لیدلے ؤه په سترګو
زیبنده دَ زیړو ګلو تربهار دے
بارے ته چه تل کشش کړے نوجوانه
کله ما په وطن کړے ستا دیدار دے
یاره ذوق په روه کړه په دکن خوښ یم
مه مې تن لره ګلوه نه دِ داکار دے

دیاد قوم دِ تعین په زور مې بیائی
خبر نه یې چه ګبنوم سیه مار دے

پخپل غرہ کښ مستانہ پہ عیش اوسہ
ما تہ هم دَ سجن غم لکہ گلزار دے!
تل دَ جنګ سورے کوہ دَغرہ پہ څوکہ
زہ میږ پہ غریبہ مل م اشعار دے
ځنګلی چہ عادلی پہ تربنو ځے وی!
کہ زلال پہ دور وی ځنے بیزار دے
هرګز یار دِ بنادی نوم پہ جهان نہ ځی
زہ ثانی دَ سمندر د کن م نار دے

## دَ ګلونو ریاض جور هجری جُدا شہ
## دم پہ دم ځکہ نالان لکہ هزار دے

---

کہ دِ غم هسے لوګے لکہ دَ اور وے
مناسب وُچہ پہ دود دیے دهرتور وے
دریغہ اور وے لہ ازلہ سوز دَ هجر
غم بہ ولے وُہ پہ ما کہ تن م سکور وے
کہ لنبہ م دَ اندوہ وے مُنتشرہ!
بایدہ وو چہ دَ زمکے پہ مخ سور وے

مابہ کلہ مُحبَس غمونہ ژوُول؛
کہ رشوت دَ چُغتی پہ دربار پور وے

فلک ما سره جنګي بیغمه خوب کړے
بخته هسے به دِ چیرے کړل که ودور وے

دَ نشاط لباس مې هجر صد پاره کړ
له بد نه یئ سر ترے کړے که زور وے

دَ غلیم ولي به غوځه په زمان شوه
که په لاس کښې مې ثابت دَ صبر لور وے

په بدال یئ همه خویشکے پتی نه وے
په شماره ورځے حیات دَ همت نور وے

دَ ستم لاس به دِ مات ؤه جفا کیشه
که له جوره دِ خبر هجري په کور وے

دکن ډک دَ پښتنو پکار مې نه دے
تن په دا عرصه دِ لیر غوندِ غمخور وے

ختک سود دَ منصب او لیدَ په سترګو
دَ اوربشو یو کنډک په وطن سیور وے

سرئے تل دِ تا په تل لکه حنظل شی
دَ هرچاچه ګرځیدنه ستا په پسل شی
په دربار دِ درمندونه دَ ګلو دی
لِتِ خوره دَ جهانو پرے غوبل شی
شم به چاوَ ګلاب ورکه ستا دَ زلفو
هرسحر یئے پټوی نسیم دِ غل شی
مشاطم چه دِ شانه په زلفو کیږدی
په دریم فلک زُهره له غمه جل شی
ستا دَ سترګو نمونه په دهر نشته
مګر لږ هغه شهند چه په سُنبل شی
تر مصری دِ عناب تیرے په تبسّم کا
دَ زره سره لتا بشه سره بیل شی
آسفته زړونه روشن کا دَ یهودو
چه پټن دِ هویدا دَ سرو هیکل شی
دَ نوم یاد چه یئے په فکرتصوّر کړم
په زبان یئے مزه تیره تر عسل شی
که په تن کښ عشق ریزه دَ الماس نه وی
په نزول یئے دَ مخ رنګ ولے بدل شی

اول لښه دَ رښتینی عشق دغه ده
چه سړے له عقله کم کا مُبدّل شی

# غمزده ختك بعید هم زمان که
# که دَ یار دَجوس خاورے یے منزل شی

هسے شورِم محبت کرے په من دے
چه د بد ب یے په کور اینے دَ کوه کن دے

ممند رغوندِ همیش پرے تازه کیږم
په دوه وُ مار وکښ آتش زما وطن دے

منقلب لکه هاروت په کړنه ځانګی
چه مِ زړه پکښ بندی چاه دَ ذقن دے

په سینه م لارے کرے دَ اوښکو
ستا دَ درخاوړے قمیص زما په تن دے

چه په تیغ دَ مینے مړهٔ غسُل یے نشته
دَ شهید په وینو سره جامه کفن دے

هندوکی له دیرے مینے ستی کیږی
هغه اور ورته بهشت چه یئے مئن دے

سرچه ورکا منت کیږ دی په دلبرے
دیر بتر هغه مئن تر هندوزن دے

دَ خوبعه مثال دِ غواړم موندلے نه شی
مخلوقات م لټولے ترختن دے!

لیږ کونه یې ستا وجسم ته ماتله
بهاری میمه را غلې په چمن دے
بدخشي لعل به کانې وه بې قدره
ستا و لعلو ته رنګین څکه شن دے
بل فضولو دے په شونډو نسبت کړے
هغه سُور ګیټے دَ نسر چه په یمن دے

هجری یار دَ محبت په سترګو وینی
که ظاهر یې بدن لرے په دکن دے

---

تاؤ دَ هجر پوشیده هسے په زړه ځي
لکه اور چه دَ فانوس په لرمانه ځي
چه بخار یې عروج اوکا و دماغ ته
دَ لوګی ګذر په فهم ترلیمه ځي
بس فراق یې چشمے دکے دَ نیسان کا
پیوسته څکه دُرر تر هربانه ځي
دَ شکیب طاقت عدم دوائے نشته
په ارمان دَ وصال عمر په کاته ځي
هسے جوش دَ جذابیه سیند ونه او کا
چه نظر له تورو کسیو په مانه ځي
هر محنت چه قضا پیښ کا صبر بویه

همیشه کله مقام لکه اوره ځي
وَله زره بدن دَ یار په کوځه بند کړ
لکه مست هاتي په هودشه ځنځیر ځي
دوه بازویې دَ آتش دَ مینې اوسوَل
چه وزر دَ شاهین نه وي ترو په ځي
وعده ګاه دَ دیدن صحن دَ بهشت دے
ناخبر به هغه باغ لره سازه ځي
دَ ایرو له بله اوره عذاب نشته
دَ آتش قهر په چوب لا په سکاره ځي

هجري ځکه دَ معنو افسر په سر کړ
چه په رو دَ شعر باندي په ویښته ځي

چه په زړه یې ستا دَ شوق لمبه تاب شي
له هغه تاوه یې تن همه کباب شي

ټل دَ زړه بنهر لوټي بدن اوده دے
تعجب ستا دَ سوارۍ یې په شتاب شي

سره لباس ته هوس مکوه دلبره
آشفته به مضطرب لکه سیماب شي

نازک تن دِ همه روغ دَ سپینو زرو
و آتش ته مجال نه لري سیم آب شي

تورے زُلفے شکسته کړے په رُخسارو
لاله گُل منجلّي تر مښک و ناب شي

ځکه خاورے ستا دَ در په سترګو مږم
په رنجو روښنی کله دَ خراب شي

ستاله تنه شم صبا په چمن تیر کا
دهن وا کا په درود غنچه ګلاب شي

دَ دوه وُ سترګو دِ مستي پکښ نازله
بیهوده یه نام په خلقو کښ شراب شي

دَ وصال وینا همیش کړے په دروغه
بے وفا وعده دِ یار وته سراب شي

عاشقان دِ په دیدن پسے ټولیږي
وسیله یې دَ حیات مُل و رباب شي

آئینه فلک رُتبه شی ستاله دسته
په خلوت کښ یے نُما ثانی مهتاب شی

هجری لاسیے اور دَحُسن خلق سیزی
چه دَ سنتے په مکان بیسر لواب شی

دَعاشق چه په وصال دَ یار نوبت وی
هغه دم یے فراموش باغ دَجنت وی
چه دَ ځان په مخ یے سترګے شی ثابتے
هیرله شوقه دَ مژګانو حرکت وی
دَعشق جیش م ذره لاندِ کړو یه جور
صبره تښتته لکه غل که دِ فرصت وی
خُماری سترګو یے بے میو کیفی کړم
په رضا دَ هښیاری ئے لما رُخصت وی
دَ نګاه په تیغ یے سر دَ توبے غوځ کړ
تقوی ویر دَ ځان کوه که دِ مهلت وی
ستا دَ مخ په بهار هسے بدله کوے شم
لکه واف کویا دَ ګلو په وصلت وی
یاد دَحُورو هلته مه کوه زاهده
چه آغاز دَ ښکلو جونو حکایت وی
دَ وصال خوازه بهتر بدل یے نشته

بدناتار پسے فوځونه دَ فرقت وى
چه لړم دَ هجران نیش په ینه کیږدى
نزدیکى یۓ دَ چشموخوب لره آفت وى
هجر څه ریزه الماس وى په کوګل کښ
په رنځور یۓ هر ساعت نوے زحمت وى
چه عذاب یۓ دَ هجران مشاهده کړ
که ادب له اوړى کاندِ ملامت وى
دَ فرقت دَ داغ په خوږ هغه خبر وى
چه په وینو یۓ لاله غوندِ لت پت وى
ماته غم همه دوخار کړو خپلے مینے
په ناحق مِ له هجرانه شکایت وى

هجرى هله عدل غواړه له دلبرو
که قصاب له مړونو کړے مروت وى

---

همیشه فلک لیده لکه دریاب شى
شبانه قمر نما په ورځ آفتاب شى
په اسرار یۓ ته خبر نه یۓ دلبره
ماه ولمر ولے جلا په شنه قباب شى
هرصورت چه مخامخ شى داوبوته
آئینه یۓ دَ شبیهه قعر دَ آب شى

نه به نوم دَ مهر وَه نه دَ مهتاب ے
دَ مخ شکل دِ سورج کله مهتاب شی

په سبزه دریا دِ مخ هسے جلوه کا
لکه مهر مه نما په شنه تالاب شی

په فلک کنده هاله اوکا پرووی
کرن پهول چه دِ له غوږونه په تاب شی

دَ رستم لینده گردون په اوږه کیدی
غوتیالی چه ترے بیسره تر نقاب شی

تل عشاق په جور وژنی خود بر سیتے
صف بانه دَ اوربرے سترگے قصاب شی

نر په ښاخ دَ مښکو واکا بهارونه
چه دِ زلفے په عذارو پیچ وتاب شی

دَ زیور دُرے چه تاب اوکا مهجوره
شین فلک په شپه گلونه دَ سیماب شی

باور مه کا نحه غلطوتش سراب دے
نه باقی دَجهان عیش نه عذاب دے
هر ساعت چه ئی موجود دَ نیکو بدو
بُود عدم یئے برابر مثل یئے خواب دے
حیرانی دِ په غفلت کړم اے بشره
ستا دَ طمعے په څراوږد هسے طناب دے
سرله خامه باده پر کړے زر فنا شے
کبره عُمر دِ جوړ قصه دَ حُباب دے
رُخ دِ نه دے ماتے مه شکوه فلک ته
دَ استوږنے مکان ستانس دَ تُراب دے
چه تر تا اول چالوئے قصر بنا کړ
که یئے نن نشانه شته ولے خراب دے
آز هوس دوه مُرشدان تر یئے مُریدیئے
بیهوده لافے کوے پیرِ م کتاب دے
دَ فرمان په خیانت دلیری مکړه
دَ عمل پوښتنه کا وُړاندِ حساب دے
دَ انصاف په سترګو یُون دَ عُمر ګوره
چه له باده یئے کوئے ورے په شتاب دے
ماتے هیڅ وفاله چا معلومه نکړه
نه هنګام دَ کودکئ که دَ شباب دے

دانایان دَچا په وعظ محتاج نه دی
په نادانو هجرؔی کړے داجواب دے

که په یار کښ تاثیر خهٔ خو دَ وفا وے
بانډه ؤوچه په دور لاهمتا وے
یو زمان به یئے له دره جُدا نه شوم
که قضا مِ حمایت کار په رضا وے
فلک کله په مُراد دَ چا گردش کا
گنه تل زه دَ میئں میئں زما وے
کشکے هومره مروت سپهر اوکړے
چه دا څو گاهه حیات په مُدّعا وے
غم به هسے خیره کی په هیچا نکړه
که الم دَ یو بشر بل ته پیدا وے
جُدائی په حیات مه لیدے په سترګو
لا پیدا په دا خرابه نابینا وے

ما هجرؔی به شکایت له هجره نه کړه
مُیسّر که په خواب وصل دَ آشنا وے

دَ هجران له وېره غمه م زړه چوی
شکر شکر چه فانی ده تل به نه وی
دَ دے غم وئېل موقوف بیان یے نشی
مګر هاله چه اشنا سره لیده ؤ وی
ن دَ نیر ساعت ارمان فائده نه کا
که هزار ځله غائب کیدم په ورغوی
په دا نیت فالونه ګورم په کتاب کښ
چه وعده دَ وصال زر که به الاغه وی
په حضور دِ کاته نورو ته ګناه دی
تیمم هله روغ نه دے چه اوبه وی
ګردون کله مهر اوکا پس له یاسه
په دولت دِ وصال خوښ کا هجریے سوی
دَ مژګانو حرکت کښته خلل دے
هغه دم چه بنو دلبرو ته کاته وی
صفائی دَ نورو زیاته په صیقل شی
کوږه دَ عشق په آس دَ یار مانه وی

هجرؔی کار په قضا او سپاره دا په شه
بدل نه کا دیر جدل په ازل شوی

چه دَ شک له زنګه پاک خاطر دَ مرد وی
ورنه یو بستر دَ خوب صف دَ نبرد وی

په هیڅ شی به مزاحم بے امره نشی
لبالب که دا جهان همه په درد وی

هغه مرد چه په مزاج دَ دهر پوهٔ شه
په زحمت کښ هوس کاله داره فرد وی

غم بنا دی شتاب دَ عُمر هسے تیر کا
لکه باد موجونه کا په هغه یے ګرد وی

په دُنیا که دانا مرد غوارے هغه دے
چه یے زړه له بیوفا چاروَنه سرد وی

دَ درم حاصل محال دے بے نصیبه
که وسعت دَ زمکے وار کا سیم و زر وی

نهایت یے دَ ګردون ګردش ایرے کا
زرکشی محل دَ شاه که لاجورد وی

که باریک نظر په کار دَ جهان اوکړے
کشمکش یے بر جنس بازی دَ نرد وی

نرا دبے عُذره کښښ دَ مهر کاندی
په هر شان چه مُهیّا دَ تاس آورد وی

دَ هر چا به غاره دوره دَ نصیب وینم
په ستم یے هورے بیائی چه یے خورد وی

## تر صفال یې دَ همت نظر ته هیڅ دی
## که هجری ته آماده دَ زر و جرد وی

چه کیږی را یاد عمر غړ تیر شی
که دَ غم وزن دا نه په زړه م سیر شی
شکر شکر په دا حال چه باقی نه دے
هر زحمت دَ زمانے چه په چاویر شی
گُذشته دور که یاد شی سُود یې څه دے
خوالم یې دَ حسرت په زړه چاپیر شی
دَ گردون په ورکړه څه لره نازیږے
دَ هوس مُدت یې لږ اندوه یې ډیر شی
هیڅ باور یې په صورت دَ قرار نشته
دم په دم یې فتح دَ چار و په خیر خیر شی
دَ وګړی کار په شیه کور مه نور وی
په صبا یې نسق واړه په بل پیر شی
ما به څه لره یاری کړه که خبر وے
چه عشرت دَ وصال زر په هجر زیر شی
دَ وصال خواږه م اوبیه دل عبث دی
له اوله یې لذت ور وستو کنډیر شی
که سختی له دهره وینے ملال مه شه
نیک و بد یې په کا ته کښ تیر و بیر شی

ساندې له ده وائي تعليم کړه بازيګرو
مخ يې هسې زړه د چارو څير په څير شي
يو عجب د ګردون څير هجر يې نوم شبه
د وصال په دور سک نن راته شير شي

هجرؔي کله په کاهش د ځان راضي دے
کشکے يا د د قضا عمر د زړه هير شي

یو دانا دَ زمانے په سیر ولاړ وَه
که کتل یې په لار ځي یو اُمرا دے

یساوَلو اهتمام کړو په هر لوري
لښکر تول ورپسے ځي میرې په خوا دے

دَ کوُس ژغ یې تر دَ زمکے تَمه اونیو
په ګردون یې پیوسته ژغ دَ قرنا دے

دانا تر په یو ابله کړو وے یې وینے
دا صاحب دَ فوځ څه شکل بے حیا دے

دروېز کړ به په فلک دا هسے نه وی
نه لیدلے چا په ملک هسے ګدا دے

نادان تر له قهره وار وَه وَیل یې
وے یې دا مذکور چه ته وائے خطا دے

طمطراق شان و شوکت وته یې ګوره
دا مذکور چه ته کوے ګله روا دے

نه ما ستا اُووَه و پیږیو لره بس کړه
ګوهری خنجر چه فن دَ ده تر ملا دے

وے یې ستا عقل کاږه وینې جاهله
دَ احول غوندې په بل طرف بینا دے

دَ خنجر موتی یې او ښکے ستا دَ خویو
سُور یاقوت یې مُشخَّص وینے زما دے

هرچه غواړی څه له چا ګدا یې بوله

که قارون دَ زمانے وی که بادشاه دے
دا دولت حشمت چه ته ورځنه وینے
نه پیدا دَ دهقانئ نه دَ سودا دے
دَ منګی تراوبو پورے یے حساب کړه
همه مال یے څوک دَ چا ځنے دَچا دے
دَ دُنیا په دولت ناز مکړه غافله
سراسر واړه جفا هم بے وفا دے

هجریؔ غم و عیش یے دواړه لابقا دی
هسے ځیٔ لکه نسیم واړ دَدُنیا دے

---

ماوے زړه دُنیا هرکوره بے وفا ده
ورته ولے عالم هومره تمنّا کا
واړه وائی چه فنا باوړ پرِ نشته
بیا شدّت په دا دُنیا سره پیدا کا
ظاهر وائی دین باقی دُنیا فانی ده
دَفانی دَ پاره بیا باقی ته شا کا
هغه څوك چه ځان حاتم ګنی دَدور
وائی مینه په دا ورانے بے حیا کا
چه یے وار په دُنیا جوړشی که یے کوم
دَ دُنیا حرص یے هیره دا دُنیا کا

فاضلان چه یې له مینې منعه کاندی
دوی په کوم روایت مینه په دُنیا کا
هغه کار چه ناروا کاندی په نورو
هغه دم یې پخپل ځان باندِ روا کا
زړه وې زه جواب کوم دَ دے خبرے
که ستا هوش دَ رضا کوش څه خوښا کا
دا همه واړه تاثیر دَ محبت دے
چه هردم له دُنیا څوک کِله بریا کا
دُنیا عین په مثال یوه جیفه ده
دا سرې لکه سُباع تل پرے غوغا کا
چه اول یې پرے غوغا کړه هغه لاړل
نن حیات په دا جیفه سرهٔ هیجا کا
وار په وار به دا هم خاورے کلحدشی
دا جیفه به کانده نورو ته رها کا
څه حاصل دَ هغو نشته بے ارمانه
چه دَ دهر په دُکان باندِ سودا کا
تر هغه نادان به څوک نه وی په دور
چه دَ عُمر په اُمید اُوږده رجا کا

هجری نن عمل کوه چه لا فرصت دے
جاهلان طمعه دَچارو له فردا کا

یوه ورځ م پُرسش اوکړله گردونه
وے م کان دَ ډیر هنر زماپدر وَه
هغه کان دِ ولے مات کړو اے سپهره!
چه په دهر تابنده لکه قمر وَه
هم دانا دَ زمانے وَه په دا دور
هم دَ کل افغان دَ قوم سخنور وَه
هر صفت چه لازمی وی د مردانو
هغه واړه هغه خان ته مُیسّر وَه
دَخوبئ صفت یے ډیر دے وایه نه شی
غرض دا چه تبرّک نادر بشر وَه
وے یے دوه امامان نه وی په یو دور
په هر وخت دَ یو نزول دَ بل سفر وَه
چه اعظمؒ امام سفر له دهره اوکړ
شافعیؒ هله راغلے په دابر وَه
په نوبت دِ تاپدر شکر ریزی کړه
ن نوبت دَ پدر نه وار دَ پسر وَه
کوم زنده په دهر پاتو یو نفس شه
چه تمام یے له جهانه آب وخور وَه
ن ثانی خاقانی ته یے په افغانکښ
که دِ پدار دَ قدیمی بلبلو سر وَه
ما وے زه دِ عادت پیژنم پلنکه

ډیر دِ اوخوړل فقیر که تونګر وه
تا هغه سلامت پرے نه ایښې په دوړ
چه دَ دیوو دَ پیریانو یے لښکروه
نهایت یے برهنه له تخته بوتله
انوشیر که فریدون که سکندر وه
خاقانی غوندِ تابوته له جهانه
چه دبدب یے دَ اشعار په دهر ښروه
انوری حکیم دِ څه شکل نابود کړل
چه ګُفتار یے تر قمر لا منوّر وه
عاقبت دِ واړه خاوړے دَ لحد کړل
روښانی که ارزانی که قلندر وه

ته به نن کله هجریؔ په خیر پریږدے
چه آدمؑ دِ ریزمریز کړو چه بهتر وه

---

په هفته کښ نحسه ورځ دَ چارشنبے ده
په دا ورځ سود وسودا کله دانا کا
که دَ کال دَ نحسو ورځو خبر غواړے
چه خبر یے دَ فرقان آیت پیدا کا
هغه لس ورځے آخیرے دَ شوال دی
عاقل نه دے چه تر ے خیر تمنّا کا

ماله شعره شغل کړه په بیجا پورکیښ
چاوے تا لره راحیٔ دَ هند افغان دے
بل مطلب مې په زړه نشته بے دیده نه
خواهش کا دَ غزلونو سخندان دے
وے م زړ ېې برېر راوله نا دانه
دَ دانا سرې مجلس داد دَ یزدان دے
چه دیدن موسره اوشه پس یې اُوویٔ
چه زُبان دِ په وګړی دُر فشان دے
وے م ماهرګز اشعار وئیلی نه دی
دا وینا چادرته وے که دِ ګمان دے
وے یې هومره دروغ مه وایه پردیسه
په بنی لاس کښ دِ بیاض په کین هم آن دے
ما وے کړم ملامت هیڅ نه یې غریبه
عقل هم په قدرِ حال دَ هر انسان دے
ما دروغ وئیلی نه دی نه غلط شوے
دا نه شعر نه اشعار سحر بیان دے
زه شاعر نه یم بے شکه سِحرګر یم
دا بیاض دَ شعر نه دے سِحرکان دے

هغه شعر چه څوک سحر ورته وائی
تا هرګز لیدلے کله په جهان دے

که پوهیږې په اسرار دَ دے ویلو
ما درالیښے کتاب واړه په میدان دے

ته چه پوره په معنو نه یے هجرؔی څه کا
ورشه گوره هغه شعر چه آسان دے

---

یو جاهل ویَل وَما ته چه خټکه!
چرخ په څه در سره بد کا ته عاقل یے
ما وے هیڅ ملامت نه یے ناخبره
له کلامه دَ معلوم چه نا قابل یے
فلك کله کینه کا له ابلهانو
ولے ته معنو ته نه رسے جاهل یے

---

یو زاهد په لارے ته فاسق یے اولید
وے یے دا عمل به تا نهایت خوار کا
هو مره بد عمل څوک نه کا په دُنیا کښ
هرچه کا هسے عمل وطن تیار کا
وے یے وا وُره اے په بنه عمل مغروره
عارفان په عمل کله استکبار کا
ته چه هسے بدائ پخپل عمل کړے
چرے نه چه دِ نادم دَ افتخار کا

هغه دم چه یے جوش اوکا سیند دَ فضل
مُکرّم به تر نیکانو گنهگار کا

یو مجرم به بهشتي نه شي حاسده
که خالق دَ عالم ستا په وسیل کار کا

نه پخپل عمل مغرور زه یمے په فضل
حق به څه شکله نومیده اُمیدوار کا

چه گناه دَ بنده نه بخښي جاهله
دَ خپل فضل په حق څه شکله اظهار کا

ځوک به اوبخښي په فضل بے حسابه
ځوک به پس دَ سرزنشه رستګار کا

جنت ځائے دَ مومنانو خو به ورشي
وطن به دَ دوزخ وارۀ کُفار کا

هجرؔی نه لري نیکي په گناه تور دے
دَ بخښش طمعه له فضله دَ غفاؔر کا

---

بے موسمه هیڅ پکار نه وی در ے خیزه
عاقلانو ته روشنه دا وینا ده
دَ خوانه عمر چه لاړ واده به څه کړے
بل چه وار دَ ژمی تیر شی څه قبا ده
بل چه نس په طعام ډک کا پکار نه وی
که پلاؤ که دوپیازه وی که حلوا ده

---

اے چه تل استخاره کړے په زاریو
څه نکبت له تنه کمُ دَ زمانے کړے
هرطرف قبر ونه غواړے دَ پیرانو
په شیخانو دِ پریشانه شکرانے کړے
دا همه جدل چه کړے په زړه دِ دادی
چه په دا حیله در پورے دِ رَخنے کړے
دَ قضا خواهش به هیڅوک تغیر نه کا
دا عمل بے شکه لوے له معنے کړے
فکر مکرِه چه به لیک دَ ازل نور شی
که خیرات دَ جهان واړه خزانے کړے

وسیله ترِ رضا بنه قضا ته نشته
ته دَ کُل طمعه له تشے ویرانے کړے

---

نه سکان کا په مرداره هومره جنګ
نه غوایهٔ هومره شدّت سره په خر کا
نه لیوان په خوړو هسې حسد کاندی
نه حرص دَ نس دَ پاره هومره خر کا
نه په نس حمله اخته هسې سباع دی
څو حسد سره اولاد دَ بوالبشر کا
په دا حال نه جهالت دَ سړی ګوره
چه بدنام په ډیر حرص خر و بقر کا

هجری بخل حسد لرې کړو له ځانه
دا خصلت په جهانیو کښ بهتر کا

---

هغه دم چه زه دَ یار سره خلوت وُم
که نسیم را باندِ اولږی آسیب وی
په مراد زمانے یار راکه دربانه
دَ هر خار ګلے عطا کا کله سیب وی
دَ وصال زمان په هجر زر تغیر کا
رښتیا نه کا زمانه دائی فریب وی
اوس مې سر دَ هوش پاس دے تر فلکه
تر زمانه به غم پنسے کوز په جیب وی
چه مې تن په خلوت لار غواړی وَ هسې ځې که په تن شاهِ عالم دَ اورنګزیب وی

هرچه بد عمل ته شا نیکو ته فخ کا
وایه سه بنده دَ ربّ دوست دَ نبیّ دے
داد همه دَ کردگار چه یئے په چا کا
ولے هسے گمان کړه چه بهشتی دے
چه په بد عمل آرزو دَ بهشت کاندِ
تش دِ باد پیمانه کاندِ مُدّعی دے
دَ بهشت لیده محال کنه هغه ته
چه یئے خولۍ دَ سرِی نه رنګ دَ سرِی دے
دا حدیث څکه وارد په دا معنے شه
چه په زړه کښ بهشتی یو اُمتّی دے
دا ڈوندی په څه بنادی کا خبر نه یم
بنادی رُخ دَ هغه چا چه مُنجّی دے

هجریؔ طمعه دَ نجات لری له خدایه
کبیره که هر څو ډیر لری عاصی دے

عمارت دَ بیجاپور وارِه عالی دے
ولے ما سرِه نزدے یوه مانیه ده
هومره هسکه ده له زمکے نه به وائے
په گردون یئے پیوسته لویه څوکه ده
پاس په سرچه یئے رسه دَ هیچانشته
په وئیل زړه څوځوی خور دَقمریه ده
دَ قمریه آوازم هم دے آوریدلے
ولے ډیره تر بهتره کشریه ده
پرنده به یئے له حُسنه سیالی نه کا
تر تارو په لِقا ښه هم ترسیسی ده
لطافت یئے دَ آواز په څه نسبت کړم
چه تر زانے یئے وینا ډیره نریه ده
دَ هیڅ ساز زیر یئے مخی دَ آواز نه دے
دَ سُرنا تر ږغ هم تیره په خوبیه ده
زه په نیت دَ ختو پاځیدم کتل مِ
چه په کوم لوری یئے ابینے په هوریه ده
زړه وے دا ږغ دَ هغے بُلبلے نه دے
هغه پروته دَ لحد په تاریکه ده

هجری مرګ بیولے کله آواز کاندی
دَ بُلبلے آواز نه دا سرګوزیه ده

ما وے عشق دِ زما زړه زیروزبر کړ
مستے څه خو فخ سنکاره کړه وَکتو ته

وے یے ځو پما میّن یے حال ظاهر کړه
شاید اوریسے عاشقه وَ آرزو ته

ما وے هومره وکتوته منتظر یم
چه به نه وی هیڅ ملا دَچا ومروته

وے یے دادِ څه مذکور او کړو نادانه
هرګز نه وائی دا هسے خوک وَ سنوته

ته چه دا خبرے وائے بے دریغه
ځان دِ زوړ کړو دَ شیخانو ودروته

ما وے زه یے پرده لرے کړم له مخه
چه دا حال دِ برهنه شی وَدیدو ته

ملایان راضی دَ هیچا په مرګ نه دی
ولے زړه یے حرص کا غومنو خوړو ته

دا مذکور دَ ختک یاد لره دلبره
تر شکرو ډیر لذت بخښی و نډو ته

آدم خان هسے عاشق په دُرخونه وه
نه قطب هسے خواهش کړ وَ نازو ته

لکه ځو خیزه میّن دی په ځو خیزه
شب و روز یے ترصدّا کا وَکتو ته

بویه دومره عشق دَ نل په دمن نه وَه
چه خواهش لری مُلا دَ شل خورو ته
بل وا آمق په کورکښ غوږنیسی په گوتو
دَ شیخانو حُب چه ویې شکرانو ته
بل پښو هومره مشتاق دَ سستی نه وَه
لکه دم سړے چه مینه کا غوښتو ته
بل نصیب هومره حرص دَ هیچا مشه
څوییے کا مدت دَ کلی نوالو ته
دَ غریب وینو ته هسے کوشش کاندِ
چه کرک نه کا دا جدل دَ چارمو ته
دُ همسایه په غوښو هسے مسرّت کا
گویا مژک شه میسّر تورے پیشو ته

**هجرؔی مخ ییے دَ باور په ستر گو گوره**
**حیرانی کاندِ صنمه ستا قصو ته**

---

که نظر دَ عزیز عُمر په کار اوکړے
کیفیت ییے واره مثل په کتاب دے
دَ کړیو شان ییے جوړ لکه فصلونه
شب و روز ییے مثال کُښے گُښے باب دے
هر سړے چه دا کتاب مطالعه کا

په نوبت یې باب وفصل ته ماٰب دے
عیش وغم دَ هرچا لیک په ساعتو نو
دَ قضا حکمت نیولے پرے حجاب دے
مسافت دَ حیات جوړ لکه جُزو نه
نصیب وینی دم په دم چه یې په باب دے

بدخصلت په ارتینه کښی هسے پټ وی
لکه پټ په لویه سوړه کښی لوئے مار
چه قابو دَ بدو نه وی ننداره کا
په دروغ کا ځان عالم ته نسکوکار
مار هله وَوځی له سوړے چه خوک نه وی
خوئے ظاهر کا بنځه هم ولے په وار

دَ هرچا په نصیب لیک دی نصیبونه
نن به نشی په زور بخره دَ چا نوره
که یقین له جهله نه کړے په دا قول
دَ باور په سترګو حال دَ دوړ ګوره
یو طلب دَ سویو کا په شهد پیښ شی
ثانی مړشی دوغ وتلے وی له کوره
یل کاسه دَ شربت دکه ځان ته کیدی
په زمان یې قضا والړ وی نسکوره

چه نصیب دې نیک و بد په ازل لیک شه
حسد څکه له چا نه کا نیکان وروره
هر اشیا په مرتبه دَ اصل کار کا
خاصیت دَ او بو مه غواړه له اوره.
دَ نیسان قطره په لس دَ صدف دُر شي
همه زهر وي چه ورشي تر منګوره
نه به خوګ ازلي کوږ په وعظ سم کا
نه به سپینه کا صابون شړید توره
څومې دَ پلار په رضا نه ځي بې غرضه
نه به لوړ په خیر اوینې له موره

ما هجرؔي باریک نظر په دُنیا اوکړ
هیڅ طرف یې خالي نه وینم له شوره

---

هغه کان دَ هنر مات شه اے خاطره
چه بهتر دَ پښتانه په نام خټک وَه
ذات و بود که خټک وَه دا دروغ نه دي
ولې کُل پښتون تنه دے مرد مک وَه
دَ وفات تاریخ یې ماله عقله اوغوښت
په دا رنګ یې دَ جواب شان و مسلک وَه
ممینه دوئمه خور ابته ویشتم وَه

چه یې روح په جمعه ورته پاک مدکوه
خاکی دارینې په هوس دَارم پرې ایښ
غین وقاف په عدد دسال دَهلک وه

---

یوه ورځ له ورځو نه زه عقل مخاطب کړم
سوال یې کړو لمانه په لذت لکه مصری
وې یې په ویلو دَ بلبل دَسر افسوه
قول به زه وایم جواب اوکړه باوری
نن په ملک دَ نظم خسروته یې دَ هروو
کا اګرچه نورهم په دا دور شاعری
فکر دَ معدن یې ذاتی دُر لرې په نس کښ
زُبان دِ اوکاږی اے دَ دهر جوهری
ګوته مِ په لب کړه ما وې زه خاقانی نه یم
چه ختمه کړم په تن دَ زمانے سخنوری
ذات دَ پښتانه بعد ولې دی تر لکونو
نه به وی په وطن چه لما اوکا همسری
وې یې خاقانی انوری سر دَ سروپه ژبه
ته یې خاقانی دَ پښتو هم انوری
رُتبه دِ دَ ویلو بالا ئ کا تر فلکه
مه یې کړه خالق دَ بد وستر کو نظری
شعر دِ په تله دَ حق وزن کا تر نورو

کہ شعر دَ مرزا یئے پہ ویئیل شی سرباری
شعر دے تہ والیٔ للہ را غلہ لہ وطنہ
څو شیرین غزلہ تخا لص سکندری
یا یئے قلندر کا دَ دکن پہ لویہ زمکہ
لا یئے کا پہ روہ بندہ دَ رب پښا وری
دا څہ شعر نہ دے چہ یئے تہ کوے ختکہ
دے تہ فرزانہ والیٔ حلالہ ساحری
ماوے تل پہ دور رُتبہ دان دَ خلقو تہ یئے
څګه کړے بهبود تہ دَ وګړی رهبری
بنہ ولہ ترتا دَ عدم مور تولد نہ کړ
قول م بیشکہ لہ ریا دے مُبرّی
تہ یئے چہ محق پہ دم جُدا کړے لہ مُبطلہ
تا غوندِ څوک نہ کا حق دَ عدل پروری
ستا پہ آئینہ کښ دَ هر شی مثل جلوہ کا
څګه کړے دا هسے بے نقصانہ داوری
پہ دا عهد کہ وی دَ زمانے لہ شاعرانو
چہ کا زمالہ شعرہ پہ حسد برابری
مثال یئے پہ څہ بویہ نہ دِ کا پا کہ کوهرہ
چہ کا ندی پہ دروغ قصہ باطلہ سرسری
وے یئے دَ موسیٰ معجزہ نشی بے رونقہ
نسبت کہ یئے یا وہ کہ پہ افسون دَ سامری

ناوے دَخبرو چه نه جوړه په زیور کړے
ځائے لری بیشکه که دِ واف کانوکړی
هر زیور دَحُسن چه لازم دے دَ وئیلو
تم شه ستا په شعر په وحدت دَ تنګری
حالِ م تجربه کړو یو په یو دَ زمانیو
واړه قابوچي په دغا کا لا به ګری
نه په قول اړ نه یئے باور په وئیل بویه
په شا همه ګرګان دی په مخ کا براد ری
ما چه مکرا ولید دَ غرض له پسرانو
کله بازیګر کا په دا شان مُزَوّری
باطل هسے دَحق په لباس بل نه مجاز کا
چه نه کا ساحران دا هسے سحر ګستری
داخه وفا نه ده چه ابنایئے دَ زمن کا
په بنه لاف دَ خلت په بدۀ او کا منکری
نوم دَ وفا شته اثر یئے نه وینم په دور
خلق دَ جهان دی همه تدی قندهاری
په دا غرا وئیلو افتخار کوے ختکه
فخر دِ حقاً بے ځایه نه دے ځائے لری

نازبه یئے په درګئی په دادور که زنده وے
په دا سحرِ حلال چه نن یئے کا بنده هجری

ما وَ زره نه ندا اوکړه چه خاطره
تر سقر عذاب دَ سجن مختصر دے
وے یې سجن کله کم دے له سقره
که عذاب یې تیرے نه کا برابر دے
خو نو مو نه یې عالمو سره بیل کړل
که نه سجن جُدا نه عینِ سقر دے
یوله کافَ تولد شه یل له نو نه
هغه جوړ په آخرت دا په دے بر دے
په هغه جهان دوزخ شه دَ بدانو
وے غلونو لره سِجن مقرر دے
دوزخ ځکه په کتاب کښ سقر یاد شه
چه سرکښو لره روغ دَ عذاب کهر دے
هر عذاب چه مقابل شی په داریښو
هم هغه درته سقر چه ضرر دے
په دوه ملکه یې حریف دَ عذاب نشته
مگر هجر دَ یوجد دَ بل پدر دے
ما وے دا عذاب چه نن پما نازل شه
په ځان ایښے هم دَ چاچرخ اخضر دے
وے یې ذوق کا جهودار منی واړه
خولتا سره په جنک شام و سحر دے
دا شدّت چه نن لتا سره سما کا

نه نصیب دَ رافضي نه دَ کافر دے
ما وے زه مکر بتریم تر همه وُ
چه لمانه فلك هسے مکدّر دے
وے یې دے چه رب پیدا کړ وله ازله
همیشه له فرزانه سره په شر دے
دَجهان تر بدو ته ورته بتر یې
چه دِ شعر زهره اوکا زی سِحر کر دے
دَخبرو په میدان له حریفانو
کومې دِ وړے دَ خوبي په دا هنر دے
فرزانه یې له گردشه تل خسته وی
پرورش یې هغه کا چه کیدی خر دے
که باور دِ په دا نه راته سامع شه
یو مثل به درته وایم معتبر دے
دَ شك ختم به دَ یقین په توره غوڅ کړې
مقابل په بینه بلکه محضر دے
ته په دا روښن ضمیر غلا دَ زهر
بار ے حُکه خورے شکر چه کونِ خر دے
ته دَ ختو سخه غوا ړے مونده نه شی
بر عوړ یې بتولوے په دور سر دے
دَ خپل فح لانُقه نه وینې په روه کښ
په کانیو یې دَ هند کړے نظر دے

خوامان به یے صبا په سینه کرځم
که نن دور دَ گردون پما احقر دے
دَ نیکی جزا نیکی دَ بد و بد وی
نا علاج به هغه رسیږی چه دِ کړی دے
طولانی شه حقیقت قصه کوتاهه
دانا والی سل خبرے یو یے سر دے
دَ گردون شکرے اوخورے خرانو
دَعاقل همیشه قوت خونِ جگر دے

پہ قیامت دَ هجری لاس دَ ده لریوان
نن دِ کا فلک ناساز مے لاس یے بردے

یوه ورځ دَ باغ په سیر ؤم و تلے
دَ چمن په سر دلبره ؤه ولاړه
دَ لاله برگ یے تر لبو ډیر کمته ؤه
په قد هم خه خو ښزید دَ گل تر ناړه
دَ هوسی ستر گے یے هیڅ و ے تر چشمانو
ؤر میږه ته یے څربه دَ زانے غاړه
زړه و ے ماه په چمن رب در کړه یو اځے
تمنّا دِ خه لرے ورځنے غواړه
ما وے اے دَ صباحت په سر یرنا ستے

ترتا ځار شه دَ دکن دلبرے واړه
دَ کنار دولت به را نکړے پوهیږم
په مولا دِ وه په حُب شه راته کراړه
وے بیٔ مخ په آئینه کړه بزیره کوره
په دا اسن طلب دَ حُب روایئ لواړه
ماوے زه دَ وخت صنموته بهاروم
تاته ئن ولے بتر شوم ترا هاړه
وے یئ ورشه دَ خپل دور جونه کوره
چه خولی یئ دَ مخ خړندې ده اوجاړه
ځئ خاورے دَ لحد هرچه زنده دی
تش کنډر دَ خاوروشته مزه یئ لاړه
دَ شباب دم چه قضا شه حیا اوکړه
څو به خط دَ هوس لولے اویئ نغاړه
که دَ خپل دور دلبرو ته شهند وے
ئن زما به نظر به نه یئ ترخا ړه
هغه تیر عُمر به اوس پیره اونه کا
که په ډیره ژړا سپین کړے کسی دواړه
چه دوران دِ دور تیر کا دَ یارانو
ئن خوشی کله وفا ده پسے زاړه
په حسرت یئ دَ تیر دم دو بنے چشمے شو
په دا دود منشد دمه شه تر پهاړه

چه د مله په دا روش نه بوسه غواړې
په پایه دَ وفا کم یې نو کړا ړه

هجرؔی ن توبه کوه فرصت به نه وی
چه دَ موت فیل دِ کیږدی په سر دا ړه

---

هر نفس مِ ورتیده دَ عشق په اور کښ
امن نه مومم دَ زړه له هایه هویه
که یو غم یې دَ شکیب په بنا دکه مړ کړم
بل بتر شی پرې نازل دَ یار له سویه
نن خود په دا روش را ته گویا شه
وې یې غوږ زما په قول کړه یکرویه
واله زړه قرار دې یو نفس در نه کړ
څو جدا یې دَ زیبا اشنا له رویه
دَ خسرو تر جوره دې در ته بلا شه
سود یې څه دې له دې بادهٔ تک ولویه
ما دې زړه خود سوال او کړو لتانه
که معقول حجت لرې جواب یې بویه
وې یې څو دَ عشق دَ شاه سره اشنا شوې
نور بری یم دَ خِرد له گفتگویه
عقل تل په دا رَوِش فضولی کاندی

که ما صبر کړے دَ یار له جُست وجویه
هغه یار چه همیشه سره مجلس وَه
نن یې داوُرم مګر نوم دَ چا له اوریه
په ژړا ژړاِم څو کاله قضا کړل
چه لشه رِم حاصل نه کړو له آرزویه
په مژده به دوارِه کسی تر فدا کړم
که یې راکه باد ذره دَ تن له بویه
چه وطن دَ یار کابل زه په دکن شوم
صبر څرنګ کړم خِرده وعظ خویه
دَ وفا په رُتبه هیڅ یم لا تر هیڅه
که مِ اُوښ یې تیرے اونه کاله جویه
چه حیات بے یاره پایم وفا نه ده
که هر څو یې غم نړے کړمه تر مویه
دَ وصال سحر ته ګورم لیدهٔ نه شی
شپه دَ هجر شوه زما تر عُمر لویه
غم به څه غوښته اَمّا که آوریده مِ
ګیے ژغ دَ اشناسک دَ یار له کویه

دوصال عمر کوتاه هجر دراز شه
هجری ښنه خوِن جګر غموبه ژویه

نن صباح ملاله ناسته وه په ستړه
زړ کے دا ارمان کاوُه دَ غره په څرګه
په ژړا یئے تورے سترګے هسے سرے وے
همه شپه یئے ګویا پته نه وه ستړګه
وے یئے څو پښتون په روه وطن شوے
قبیله دَ اکوړی نامی یئے سترګه
بیم یئے نه وُه برسیرن لکه سر کړے
په معنے هسے محکم وُه لکه غرګه
اکوړی چه زمکه اونیوه په توره
خالی نه وُه په هیڅ دور له بزرګه
نن یئے ځکه مهابت برکت لاړ شه
چه ګیدړ شه وطن دَ شیر بدرګه
بے مکانه بانګ یئے که وطن یئے بائیله
خان بروه دَ خټک وه نخسه چرګه
نحوست حسد دَ قهر په ملک سازکړ
په صورت لکه کرجی په سیرت ګرګه

مړه زندګ همه بدنام کا په وګړی
هجری مشه له چاپا تو بده پرګه

هر سړے دَ خپل جوهر په قدر کار کا
نیک له نیکو تولد کا بد له بدو
چه سرشت یې سعید نه وی له ازله
نصیحت پرِ کله لږی دَ اسعدو
له بد خویه که بنه وینے باور مکړه
هغه وارہ په تقلید کا دَ امجدو
له خوږه میوه اُمید کا زیرک نه دی
چه ارهنډه کا بنا په خپلو یدو
چه د یار په قابو کاندی په یاری کښ
دَ تبه تورکے یې پورے شه په خدو
یو عمل یې په گفتار موافق نه دے
هی توبه له هسے غولو مشددو

په صورت یے یې غلط مشه اے مهجوره
زمانو خصلت او نیوه دَ ددو

---

یو صورت مِ برایه په خوب کښ او لید
ما ویے کوز له شنه فلکه پاک ملک دے
ویے یې کوره دَ هجری کوم دے مسافره
دَ لید وشوق یې تیر په زړهِ مِ لک دے

ما وے کوم هجری ته غواړے خبر نه یم
دا جهان دَ هجری نا مو همه ډک دے

وے یئے زه هغه هجری غوارم عاقله
چه د بد بد یئے دَ اشعار بر تر فلک دے

ما وے نن هغه نصیب هسے چاتهٔ ینده کړ
چه نه انس پرِ خبر نه جن پرِ شک دے

دَ دُنیا میدان یئے واړه په ده اوغوښت
دَ فلک پنجه چوګان دے یئے پتک دے

شین اسمان توره په کف ورپسے زغلی
په کومک ورسره مل هجر مردک دے

یا مُفسد هجر یئے نیت لری دَ وژلو
دَ ګردون دوره دَ دے کافر کومک دے

دَ یار حال یئے باد راوړی ورپسے ګرځی
مونده نشی په غوښته یئے هک ویک دے

نه یئے نمر په دیدو وینی نه مهتاب
کوره چرته خلوتی دَ چا په وک دے

دَ اشعار اسم یئے شته دے لیده نه شی
خدائے زده ځائے یئے په سما که په سمک دے

چه دا درے خیزه یئے نه مومی پیه دوره
مُستریئے تا ته ګران تر حُله لک دے

وے یئے ذات دَ هجری کوم اسم یئے څه دے

پیروی دَ چا کوی کوم یے مسلک دے
ماوے هر سړے چه دوست دَ پاک نبیؐ دے
دَ بنده هجری تر ستر گو مرد مک دے
هر کیدی چه پیروی دَ احمدؐ نه کا
و هجری ته لا سبک تر یوه ککړ دے
غلیان به دَ نبیؐ صاحب پرے وُلم
دَ لیند ے په ژړه مِ جوړ دُحق ناوک دے
دَ ثانی مصرعے په سیر یے اصل کوره
ختک ئی په بنه اشعار له زړ ویک دے
دَ اشرف په نام اشرف شه له پدره
په هجری یے دَ اشعار نوم مُبارک دے
هر دانا به فتوی کا په دا خبره
چه مِ شعر دَ پښتو آب و نمک دے
دا مضمون چا په پښتو ویلے نه دے
کذب نه لری دا دے باور مِ کلک دے

وے یے پس له ډیرو ورځو ئی خبر شوم
چه هجری یے تخلّص اشرف ختک دے

ځوک چه هیر دَ یار نصیحت کا
زمانه واړه پرې ملامت کا
دَ خدائے رحمت شه په هغو باندِ
که دیر ضروروی نظر به پټ کا

چه جفا وی سرشته دَ چا په تن کښ
هغه کله وفا کاندِ په زمن کښ
په وئیل به دَ هیچا وفادار نشی
چه رب کیښه نه ښوه وفا په هغه من کښ

نجات نشته له هجرانه په تدبیر کښ
داګمان دِ هیڅوک نه کا په ضمیر کښ
زه له یاره هسے وصل یې چه بیل کړم
لکه دوه ځاری چه جګی شی په حریر کښ

بل مطلب مِ مرکز نشته په ضمیر کښ
مګر یو فکر دائم دے په تقدیر کښ
یوځل یار سره جوړه په هسے شان شومے
لکه دوه کوټه چه وصل شی په حریر کښ

په هیچا به غرض نه کاږه غمونو
که انصاف غُبله کړلے عالمونو
چه حاسد په ظُلم راض دَنس هوا کا
دَ بل زړه غمونه غوځ کا په نوکونو

په هغه یارِم هزار ځُله سلام دے
چه یے غم دَ هجر میشت راته مُدام دے
چه هجران په جهان شته دے بنادی نه کا
هرچه عیش په وصال کا نندی حرام دے

سپینے زیرے تا په جونو کښ بدنام کړم
سزاوار دِ دَ کُلَرنګو دَ دُشنام کړم
که هزار ځُله فغان کړم پروا نه کا
نه نظر په مهر کا نندی چه سلام کړم

چه په زیره دَ چا سپین ویښته ظاهر شی
دَ ځوانئ نوبت قضا عُمر آخر شی
په دا وخت دانا هغه چه بنه عمل کا
دَ زلمیو له خصلته نوز صابر شی

هغه دم چه دَ وطن هوا کړم یاده
وایم راشه برابر دَ مُراد باده
کوندِ بیا هغه یاران مشاهده کړم
سفینه له پانګه ووځي سرهوا ده

زه که وایم طالبان دَ دُنیا سپي دي
ملامت به هرګز نه کا چه سړي دي
هم هغه ګنه سړي چه سرپټوب کا
وارړه مه ګنه سړي ګیاه جنس دي

داچه تاوته خبرے څوک په خولے کا
له زړه نه وائي هرګز تش قیصے کا
زمانیوم زړه شین په ډیر لیاس کړ
هیڅ وینا په رښتیا نه قیصے لیپے کا

اوس به آغوندم جوګي دِ تاله بیسه
چه خارج کړمه فلک له خپله دیسه
یو عشرت په صد هزار رنجه بدل کړے
عجب خوئ لرے ګردونه کا نه لیسه

په ریاض کښ نن هر گوره ډیر گُلان دی
خلعتونه یې آغوستی دَ نیسان دی
رنگارنگ نمری په تن مخ یې ښکاره کړ
گویا جوړ دَ عید دَ ورځې کودکان دی

چرخه څه گناه دې او لیده په مهجور کښ
چه لماشه یاره جُدا ستا په فتور کښ
یارم پاتو په وطن زه په دکن شوم
اوس به یاره نیسمه بل په بیجاپور کښ

څوک چه مری دَ ننګ په کار کښ سعادت دے
هر چه او تښت له دے کاره ملامت دے
عزت گرځی هم هغه په جهان غواړی
چه بیولے یې دامن دَ لوے همت دے

غم هرگز دَ دُنیا مه کوه که مرد یې
اخته شوے له حرصه په دا درد یې
په قرار دې هرگز نه پریږدی جاهله
ډیر حرص مثال سیلی ته لکه گرد یې

په چمن چه جمع شوی بُلبلان وی
دَ ګلونو په وصال ځکه نالان وی
هر زنده چه دَ وصال شکرے نوش کا
ورپسے یے زهر بخزه دَ هجران وی

هر سړے چه په وصال دَیار خندان وی
شک پرِ مه کوه هرګز هغه نادان وی
هجران بنه چه پسے وی دَ وصال طمعه
خندا مه کړه په وصال پسے هجران وی

په رضا که دَ چا جوړ کیدے کار وینه
دَ هیچا به په زړه نه وُو ارمانونه
قضا کار په رضا کله دَ هیچا کا
ارمان ځکه په هر زړه کیدی زخمونه

دَ هر چا چه په نظر هغه رُخسار شی
په جامه کښ یے پیدا وُرېږے هزار شی
په قرار به خوب په څو هغه سړے کا
چه یے وُربږے هزار پسے په ازار شی

په ځیر ځیر ګوره دَ باغ ګلونه
پسې به او کړې بیا ارمانونه
زیبا بهار به کاندهٔ خزان شي
همیشه نه وي ګلزار ګلونه

ماته ژغ او کړ شباب چه لاړم لاړم
ماوې رابه نشي بیا که ژاړم ژاړم
دَ خوانئ زمان مونده په طلب نشي
همیشه که یئ په دهر غواړم غواړم

په عظیم دریاب مثال دار دَ جهان دے
پانه یئ پانه یئ لته وَلے ماځیران دے
یو ستره دَ بنادی پرے کینلے نشته
هر ورق یئ په غم لیک یا په ارمان دے

هغه زُلفې چه تل غوړې په فلیل دي
هغه کوتې چه لا سپینې تر چنبیل دي
لګه ګرد دَ باد په فخ هسې خورے شوے
زمانے مکرچان کړے په غلبیل دي

تاکه دیر دولت تول کړې دَجهان دے
عاقبت دِ نتیجه وارهٔ ارمان دے
بې کفنه به لوړ هیڅ ځنې یو نه سے
هغه هم بیشکه نه لا په گمان دے

سرود یان چه سرود کرم کا غریب ری
هلته اخله په لمنو عشق لونبیزی؛
دا ساعت چه یو ځل شا کا مخ به لښی
دَ فانی دُنیا دوړونه دی تیریږی

یاری مه کوه هرگز دَ جاهلانو
په دوستی کښ چار کوی دَ غلیانو
غلیمی در لره بنه دَ فهمیده وُ
نفعه نه بخښی یاری دَ ابلهانو

په دُنیا چه چیرے دورنگ دی
وارهٔ سپی دَ سړیو په رنگ دی
سری هغه کښه په دانا بوده
چه په ضرور کښ ولاړ په ننگ دی

بناسته ستر کے هغه چه باحیا وی
بے حیا ستر کے به خه کوی که زیبا وی
ارتینه چه زیب لری پوهیږی نه وی
په بناست یې غلط مه شه سپینه غوا وی

هغه ستر کے چه په شور نکه زیبا وی
زه یې مه وینم هرګز چه بے حیا وی
که یې مخ تر سپوږمۍ سپین پکارم نه دے
چه خالی له بنه خصلته بے وفا وی

نیک و بد چار دَ د هر کس نه تیره
تیره چار یې نهایت کا خالق هیره
دَ دُنیا مثال پا سے دَ قمار بازو
هره چار یې کهے تین شی کهی تیره

قرار نه لری په هیڅ فانی سرائے وی
دَ هر کار یې کله سر وی کله پائے وی
په یوه لور چه یې کور مه خندا وی
که په بل طرف نظر او کړم هائے هائے وی

دَ هر چا چه په نصیب شُوے قابل وی
له همه غمه یےُ پاک صحن دَ دل وی
نا قابل شُوے نصیب دَ هیچا مه شه
به الم په دُنیا کله تر ده بل وی

هم صنم هم گُل و مُل او هم ځوانی ده
بله کومه تر دا بنه زند گانی ده
غنیمت گڼه دا وار به گانده نه وی
وفا نه کاندی له چا دُنیا فانی ده

که هر څو دُنیا وفا نه کا فانی ده
بارے شُکر ئن دَ گُلو ارزانی ده
او بیشکه مُل حلال نه دی واعظه
ولے ئن یےُ منعه مه کوه ځوانی ده

ئن موسم دَ نوبهار خیز دَ گُلزار دے
نوش دِ مُل دیدن دِ گُل سرود پکار دے
دا طامع مُطرب کرمی په سرود نه کا
په انعام یےُ کرموی دَ زر و یار دے

نن موسم دَ زیړو ګلو غنیمت دے
په غارت یې دَ خزان ګانده نوبت دے
دَ زوال له عیبه پاک کله مونده شي
چه پیدا په دا فنا هغه دولت دے

دُنیا ملک دَ هوس نه ځائے دَ ارمان دے
په هر زړه یې تیر لک کړے دَ هجران دے
هر سړے چه جینے حَي داغو نه یوسی
هم په دغه اخته څوپئے مهمان دے

نه مردان که بنے دلبرے دَ جهان دی
عاقبت له دُنیا تللی په ارمان دی
چه احوال یې نن بیان کا کتابونه
هغه واړه دَ خاکونو بندیوان دی

یاری نه لری دَ چا همه دَ سُود وی
باشنده دَ دهر ځوئے دَ مقصود وی
پیروی دَ هیچا نه کا بے مطلبه
که اشنائے حقیقی پدار په جود وی

دا جهان ځکه دَ ارمان دار دے
چه خزان دیر وی لنډ یئے بهار دے
نوبت چه تیر شی کله پیره کا
ساعت ساعت یئے دَ چارو وار دے

هجری کیده اندوه ته غاړه!
ښادی په څه کړے ځوانی دِ لاړه
خوبی دَ عمر په غم کښ تیره شوه
بیا به رانه شی ور پسے ژاړه

زړه به ډاډه کړه هجری محزونه
آخر به تیر شی دا ساعتونه
خوشی دَ وصل که دوران را نیوه
همیش به نه وی هجران غمونه

صبا غنچے کړه دَ باغ ګلونه
مونږ مسافر یو صبا به ځونه
دیدن دَ ګلو همیشه کله وی
په مراد کیږی کا فلک دورونه

غنیمت شماره دا بنه وختونه
یاره چه وینو سره مخونه
دا کرو فر چه لید په زمکه شی
زر به یې نور کا فلک رنګونه

چه نوبت دَ موت قضا وارد حمل شی
له دُنیا همه تغیر دَ برد عمل شی
ساکنان یې تن په تن عیش رانی کا
له فلکه کنج دَ سرو په زمکه تل شی

هوښیره مه کړه په مال نازونه
اول دَ نورو وُو دا مالونه
لتا به کله یاری تر سره کا
په مکر یې تیر کړ عالم زرګونه

په چرته لاړ غه زلمی جونه
چه به یې ناز کړ په دا ځایونه
خبر یې غوا ړمه موندله نه شی
تکل دَ کوچ کړه پسې به ځونه

ترکومه به اوسی په دا ملکونه
ورانده مې لاړل پلار و نیکونه
چه مرګ پرِ راشی تر یې جُدا کا
که ملک یې ډیر وی یا زر لکونه

ډیرم اولیدل زربفت شالونه
چه څنو تول کړل په ډیر کالونه
مرګ چه روان کړل له کوره کورته
نور و قسمت کړل هغه مالونه

حادثه هر کوره بنه وی
چه اوریده نه شی وړه وی
نیک و بد همه ظاهر کا
ولې غم دے چه اُوریده وی

په ډیر غم کښ به تل دق وی
چه یې یار ناموافق وی
د غم کار په هغه نشته
چه آشنا یې موافق وی

قضا له عقله دانا تغیر کا
څُنې خطا دَ بهبود تدبیر کا
ماهی په غپله ځان لره راولی
مرغه بې غُذره په دام اسیر کا

قضا چه راغله طبیب ابلهه شی
دارو له خپلې نفعې گُمره شی
دَ مار په غوښو میږی اړانه کا
شیر بې قُدرته لکه رویه شی

هجری پریکړه له خلقو طمه
هاله به خلاص شې له ډیره غمه
یاران واړه دَ مطلب څوړُ دی
په اخلاص نه ځیٔ خلوص قدمه

دَ غریب هجری چاره نشته بې صبره
چه دَ زړه یې هیچ پریکړه فلک ببره
دَ گردون څو دا روش چه کینه کاندی
ترم ولې ورتوی په هجران کبره

هر نبات چه بنات نوش کا دَ نیسان
زر تر زره نیش په خوله کا دَ خزان
چه خوازه دَ وصل خورے بیغمه مشه
البته به تا دِ سنه نوش کړے دَ هجران

نه کالونه گذشته د السّم کال دے
چه سپهرم سرگرم په کوښمال دے
دَ دُنیا طمع یئے تاره پتاره خورے شوے
دَ غریب هجری اُمید په ذوالجلال دے

دا شه راشه چه دیدن کړو غنیمت دَے
هر زمان دَ نوی نوی کار نوبت دے
نن ساعت به صبا کله دا پیر زو کا
شین فلک هر کوره بے مروت دے

که تازه کا نوروزی نسیم گُلان
بیا یئے زر کا پژمرده بادِ خزان
دَ هر خیز دَ عمر خو گکا هم بهار وی
نو ریئے زر له خو بمه غزل کا زمان

باقي مه کښه ياري دَ اين و آن
عمر وزيه چه يې غواړې دا زمان
خزان دور دَ ګلونو زر بدل کا
که هر څو يې آرائش اوکا نيسان

په اشعار چه دَ فارسي سخن راني کړم
په لحد کښ ارواح خوش دَ خاقاني کړم
دَ پښتو ژبې شاعر په زمان کوم دے
چه يې زه په دا هنر دَ ځان ثاني کړم

زه حلال سحر بيشکه په اشعار کړم
ځکه هومره پخپل شعر افتخار کړم
هر غزل چه مې صدور له فکره اوکا
جواهر دَ ډير عالم په سر نثار کړم

هغه شراب طلب کړه چه وي تش له غل وغشه
راځه کړه شيشه چه يې په دم کړم همه تشه
قباد دَ ننګ پاره کړه له رفيق يې دَ مستانو
کنشت لره را درومه لکه زه يم هسې ته شه

پما ننګ و شرم ډیر ولاړ په ننګ یم
چه په اور خپس سیزی هغه پتنګ یم
چه دَ مال په طمعه خوئی کا دَنامردو
کله زه دَ عُمر و زید غوندې دو رنګیم

دَ اکوړی په سرائے تو ده ډیرے جنبے دی
پرے ټول شوی خوبے ننګ دَ قبیلے دی
چه حیا او ننګ یئے ګورم باور او کړه
په څو رنګه مسخره ترخان برے دی

دَ آرا به دروغ کړل رنګین ځایونه
تر شیریئے لوئے وُو دَ باد بریتونه
له وره یئے هسے ګردون خارج کړ
لکه تیز صادر شی دَ خره له کُونه

دَ هر چا بچائے چه پاتو ناخلف شی
اسم و رسم یئے دَ بنو واره تلف شی
ناقابل دَ چا په مینه پاتو مه شه
په بد خوئی یئے آخر بد همه سلف شی

که هر څو په دکن ډیرے دی دلبرے
هجرىؔ ته په غوره اونیوے گوهرے
چه په مهرِ تل یاد کړے مرگ دِ مه وه
لب شکرے سیمین برے مُوکمرے

دَ ریاض میدان همه اونیوه گُلو
په هر لوری یئے آواز اوکړو بُلبلو
موږ دَ دهر دَ بنا دی ه فرزند پیدا کړ
دمان بوَلی ورسره شیشے دَ مُلو

څو په تخت بانډِ قائمُ دے اورنگ شاهٔ
په نوکرئ دِ هیڅ پښتون نه کا ویساه
نن آغاز دَ لسم کال دے باور اوکړه
چه په بند کښ یئے زیریږم بے گناه

چه تحویل شی دَ ویساك
شین اطلس شی هم دَ خاك
دَ زړه غم کړه په عیشونو
له جُمله اونډوهه پاك

چه مطبوع مې په خاطر وی
اوس هغه غیرِ حاضر وی
چه هرگز مې پکار نه دے
هم هغه دا ته حاضر وی

که مې زده وے چه په مخکښ دا بلا وه
نه به خوب وه هغه دم نه به خندا وه
اوس نازېږم کوند عیش وی په مخکښ
گذران شوه هغه ورځ چه د جفا وه

چه څوک لوټ خونِ جگر کا
هغه زده عِلم و هُنر کا
هیڅ حاصل نه کا له عِلمه
په بازیو چه زړه سر کا

بے شرمه ارتینه مکړه بے وفا ده
تر حیا زیاته مینه په دُنیا ده
که په کور دِ چرے درغله نور ژاړه
وایه راوسته نصیب توره بلا ده

بیا یه دانشی زما هغه همزولی
چه مو تل سره مجلس که په یوغولی
دَ هریار ژغ مشتمل په طلب آروم
البته به پسې ځم چه تل مې بولی

ربه نکړې هیڅ غمګین بنده په یاد
چه کرم دَ خوشحال نکړې په مُراد
پخپل فضل مې دَ کار کُشائش اوکړه
دنیا ورځ دا پاندِ غم کړ له سواد

دریغه اولیدې دَ روه ملکونه
په حیات دوغ شوې دَ زړه زخمونه
پیری یې داغله هجرؔی به بوزی
هورې چه لاړل همزولی ملونه

زه ګناهګار یم زیړه کستیره
دَ نورو دیرو ولی ستا په تیره
صغیر چه خطا شی کبیر یې عفوه کا
بنده معاف کړه ماه منیره

دَ ژوندون مزه هغه کښم یارانو
چه بښې بُښکلې وی په باغ کښ دګُلانو
دَ مجلس حلقه خالی وی له غمازه
حاشیه یې وی زیبا په سرودیانو

# د فارسي کلام

# نمونه

آه در دم واه در د آه و آه		کر دور و در درو د هم اعمار ما
صد سلام و دمع ما همراه او		مر صرار رو کرد سو صرار ما
ومرکه دارد طرهٔ ممدود ما		کالعدم در دکهٔ عطار ما
کار مارا ار روا دارد ودود		سا لما دارد روا دلدار ما
اکر مارا وصل او گردد حصول		هار دارد دوده دور هار ما

بهرهٔ شاه شود دولتِ دارا اعزاز
زندگانیش فریدون باد ز حدِّ انداز
عرضکے هست رهی را بشهنشاهِ غفور
سایهٔ عدل بفریاد غریبے انداز
رتسع بگذشت که در نارِ عتابت هستم
سال عاشر شده . بر عمر عذابم آغاز
پس آزان کشش قلمِ عفو بجرمم راندی
بعد ایّام کثیر و پس از اعمار دراز
باز شادی و خوشی پا بفلک بنهادم
تارکِ فخرم از چرخِ برین گشت فراز
عازم بارگهت گشته باُمیّد تمام
تا شوم از رهِ لطفت با ماثل ممتاز
بعد تاریخ رسیدم بحضورِ پرُنور
برخلافِ روشِ عفو روان شد انفاذ
گشت تفویض همان دم بکلاغانی چند

اختیاری به نگه داشتن و مجلس باز

گرچه اصدارِ چنین حکم پس از عفوِ گناه

دُور بُود از کرمِ شاه بصد تیرانداز

چاره جز صبر ندیدم که چنان امرِ خطیر

شُده صادر ز لسانِ شهِ صاحب اعزاز

ماز انفازِ چنین حکم بصد حیرانی

مانده در دائرهٔ حزن باندوه دمساز

یعلم الله جرم نیست نمیدانم هیچ

کیف ورزی که بر آن بنده معاتب شد باز

برخلافِ اہلِ بنده عیان گشت چنین

درِ کے خانهٔ محنت بمن مسکین باز

میکند جنبشِ هفت اخترِ سیّار بدور

هردم از ملک فنا حادثهٔ نو ابراز

ای خطک کیست کز ادوارِ سپهرِ بیداد

درد صد گونه ندارد بدلِ خویش طراز

شکر و سم ز قضا دان بالم باش صبور

ناله تا چند کنی زین فلک رو نه باز

آخر کار و مدارش چو خیال هست و شراب

نه غمیں باش بجنگش نه ز الطاف نیاز

انکشاف کره کار چه جوئی ز انام

هر نفس دارد بدرگاه خدا دست نیاز

از محبان خداوند و نبی آمین باد

هر دعائی که کنم بعد سر انجام نماز

تکیه بر رأفت او کن که در اجرائے امور

نیست مر ذات ورا هیچ شریک و انباز

در قضائی دو جهان هم بدلیل تحقیق

لیس جز علمش بر حال خفا محرم راز

جز به امرش نه رسد دست به دامان مراد

خطلکا از مه دل باز کش از بیهوده آز

# فرهنګ

## الف

احصا: شمیرل. د علم ریاضی یو ښاخ

امل: اوږده طمع

اول: خون. ضمانت. یرغمال

الطاف: مهربانی

اقراء: اولوله

اذاجا: کوم وخت چه راشی

اقصا: انتها. ډیر لرې

اجابت: قبول

اصفیٰ: ډیر پاک

اضلال: ګمراهی

آمی: وینځې. خدمتګارې

آخضر: شین. زرغون

اهمال: بیکاره کول

اُورو: اُفق

امتناع: منع

ارتفاع: اوچتوالی

استماع: اوریدل

ابنا: ځامن. اولاد

اختداع: فریب

اوجاع: تکلیف. درد

انتفاع: فائده

استملال: پریشانی

اختفا: پټول

اوځار: ښکاره

اخوک: ودور

اسفل: رذیل. کمینه. فرومایه

الطفا: غرق کیدل. د اور شعله مړه کیدل

اونغوږه: واوره

اوشکاوه: رائیبکو

انګڼ: صحن. غولی

آرسی: شش - آئینه
اوربمه: سپوږمی
اجال: جمع دَ اجل
اوړنې: لوپټه - پړونې
احداث: واقعه - پېښه
انبعاث: پورته کیده
ابتهاج: خوشحالی
انجلا: روښانه - خروج
الحاح: سوال مع اِصرار
انجاح: حاجت پوره کول
اجناح: وزرے
اصفر: زیړ
ارقم: دَعربو دَیو قبیلے نوم
اهتزاز: خوشحالی - انبساط
استلذاذ: خوند - خوږوالے
التذاذ: خوږ والے
آز: آسره
اغماز: غرور - غمزے کول
اوباش: آواره - بدمعاش
احزان: پریشانی
انتقاضی: ماتول

اغتصاص: غصه کیدل
اختصاص: مخصوص کول
انقراض: نیسته - ختمیده - پریکیده -
اعراض: مخ اړول
انتهاض: پاڅیدل
احضار: موجودګی
اغلاظ: سختی کنده
اغتیاظ: قهر - غصه
احتفاظ: حفاظت
اتعاظ: پند - نصیحت
ایاغ: پیاله
اجوف: دَ د - مینځ نه خالی
احظاظ: مزه - خوند
اعناق: څټونه -
اودر: تره - دَپلار ورور
انام: مخلوق
اغشته: ککړ
استفسار: پتوس - پوښتنه
ارتنګ: مانی
اضطرار: بیقراری

اُذن : غوږ
ارګجه : مخلوط
امتناع : منع
آلسته : آیا نه یې ته ؟
اُخرا : آخرت
اعتساف : ظلم کول

استکبار : فخر ـ لوئی
استخاره : طلب دخیر
ارانه : اخته ـ تکیا کیدل
ابرش : بزګ ـ رنګارنګ
ارجل : ایسمار ـ بې وخته

# ب

بې چلا : بې نوره
بادمباهی : سیلۍ
بضاعت : سامان ـ سرمایه
خـــزانه
بلاق : پیزوان
بغا : زناکار
بُوبک : دیومارغه نوم دے ـ
بحار : بخرونه
بره : ورغوے ـ اورے
بومان : کونګی ـ چغد
بسر : چارګل
باشین : یوښکاری مارغه
بیچون : خدائے پاک

باهو : دبنګړی یو قسم
بیاض : کاغذ ـ دیوان ـ سپین
باده : شراب
برغه : دغره مغربی حصه
بیتل : بې کچه
بقر : غوے
برهان : دلیل
بیلک : دغشی څوکه
بطلان : باطل
برات : خوشحالی
بینه : ښکاره
برایاء : تیره شپه
برد : یخنی

بطحیٰ = مکه معظمه
بدامی = کبرجن - مغرور
برغوث = ورګه
برمته = حصارول

# پ

پسول = کالی - زیور
پتک = غونډ سکه - ګوله
پیکې = برچکې - بیچکې
پاد = تخت
پیلپې = پرله پسې
پیخال = غل
پشن = د یو سړي نوم دی
پهش لوهار

# ت

تارک = ترک - د تندي برخه
توبیخ = رټنه - تنبیه - زورل
ترصّد = انتظار
توتیا = رانجه
تلبیس = اشتباه
تراوت = تازه ګي
ترنګ = بد نیته
ترسا = آتش پرست
تغدري = ساړې
تراړه = خراب
تړه = کاڼي - چټان - کټ
تذهیب = طلائي کول
تومن = لښکر د سلو کسو دسته - علاقه - سیل کلی -
ترالت = پویه - د اس منډه

# ث

ثمینه = قیمتی

# ج

جنود = لښکرې

جزم = مضبوط اراده

جانی = جفاکار

جوس = در - کوڅه

جزوع = بې قرار

جره = باز

جواسیس = جاسوسان

جرد = لښکر

جاده = لار

جیش = لښکر

جوال = زانګو - بوجهد ګرځیدونکې

جماد = ساکن - بې حسه

جریده = ځانله - یوازې

جوشن زغره

جل = جینه

# څ

څره = بربنډ - ښکاره -

څوم = کمین ګاه

څرګه = غوړکه

څکوی = راکاږي

څپ = بوسه - خوله

# ځ

ځبله = یوتربله

## چ

| | |
|---|---|
| چول = صحرا | چمچی = چینجی |
| څمکلی = زوبنډی | چیپک = یومارغردے |
| چوتار = عربی پټکے - سپین | |

## ح

| | |
|---|---|
| حرافت = انحراف | حزف = لرے کول |
| حثاث = قارځن | حذار = ویره |
| حراث = دهقان | حداد = لوهار |
| حوت = کب - مهی | حدیقه = باغیچه |
| حنظل = مرغونے | حدوث = پیدا کیدل. |
| حضر = تدبیر | پیښیدل |

## خ

| | |
|---|---|
| خیار = سروه | خاذ = بنجر |
| خصل = بازی | خصومت = دښمنی |
| خضوع = عاجزی | خلیده = ننوتے - تومبلے شوے |
| خفا = پټ - مخفی | خبث = پلیتی - ناپاکی |
| خفاش = بناپیرک | خنک = اس |

| | |
|---|---|
| خذف = ټکرے | خذ = اننکے |
| خلت = دوستي | خرګاه = منزل ګاه - پړاؤ |

# د

| | |
|---|---|
| دیت = خون بها | داراب = دارا |
| دُرر = جمع دَ دُر | دیوره = منځار |
| درائے = جرس | درګے = ځنګلے |
| دیوث = بے غیرته | دلوه = بوقه |
| دُماغ = دَعربو یوه لویه | دُهوره = دُره |
| دفاف = دم | دغل = ټګ - دهوکه باز |

# ډ

ډنبره = ثیراه کښې یو مقام دے چرته چه خوشحال خان خټک وفات شوے دے -

# ذ

ذمیمه = ناکاره

# ر

رجا = اُمید
رقت = نرمي

رویا = خوب - څهره

راغ = دامنِ کوه - بیدیا - سبزه زار

رویین = سخت - فولادی

رافضی = یوه فرقه ده - ترک کوؤل

رجل = سړے

رافت = نرمی

رعات = والی - تاج

روزن = روشندان

راغبه = ورشو - سبزه زار

رواق = شراب

ردا = څادر

راجګل = دیومقانوم دے

رفاقت = دوستی

رمیدن = تښتیدلے - ترهیدلے

رقت = نرم دلی

رستګار = خلاصی - نجات

## ز

زاوه = کُنج - کونه

زمن = زمانه

زیرمه = غمخواری - فکر

زجر = رټل - سزا

زخمه = شهباز - مضراب

زیبق = پاره

زنبق = ګل چمبیلی

زاد = توښه

زکا = پاکوالے

زجاج = شیشه - پتکرے

زهدان = بچه دانی - رحم

## ژ

ژدن = غوښت -

# س

سنجل = آئینه - هنداره

سپر = ډال

سباع = ځناور

سجن = جیلخانه

سمک = کب - مهے

سپاره = پاله - سپار

سره = مغل مطلب دی

سیما = نښان - علامه

سریر = تخت - کټ

سخط = غصه

سداد = رښتیا - د وعدے پابندی -

سماخ = د غوږ سوړے چه اوریدل پرے کیږی.

سواد = تور

سم = زهر

سوراغ = کره کوته معلومول

سقف = چت

ساق = پنډیه

سها = د سهیل ستورے

سمر = قصه - مشهور (غیر یقینی حکایت)

سراد = د اسو په میاشت کښ د هندوانو د خیرات یورسم -

سکه = نو

سفره = خوان

سبک = سپک

سهیم = شریک - مساوی

سرج = زین -

سکرات = نشه

ستور = غوبے

سلف = تیرشوی - پخوانی

سرزنش = سزا

ساجور = د سپی پټه کردنی

---

# ش

شم = خوشبو
شین شین = قینچ - نازونخره
شقاوت = بدبختی
شهند = شاهین
شمیمه = خوشبوئ
شفت = شونډے
شطط = زیاتے - ظلم
شغف = شور
شحنه = دُښمنی

شخوده = نوکارے شوے
شارک = بنارو
شقی = بدبخت
شهاب = وړانګه - شعله دار
شوخ = بے حیا
شنک = ډاکو -
لُوټ مار
شلنګ = ډنګل - توپ
پیتون - ګام -

# ص

صعود = پورته ختل
صلابت = مضبوالے - مضبوطوالے
صفوف = قسمونه
صرصر - سیلۍ

صلصل = کوګوشتک - قمرۍ
صوت = آواز
صبوح = دَسحر شراب
صباغت = رنګینی - رنګیدل

# ض

ضرا = مرض - تکلیف

ضیغم = امزرے

# ط

| | |
|---|---|
| طغان : بيرغ - جنډه شاهي باز | طارم : درياب - اصطلاحاً آسمان |
| طرو : ښځې | طراز : نقاش - ليکونکے |

# ظ

| | |
|---|---|
| ظن : ګمان | ظل : سورے |

# ع

| | |
|---|---|
| علن : ښکاره کول | عطشان : تږی |
| عطسه : اينګے | عون : امداد |
| عذار : اننګی | عارض : اننګی |
| عنادل : بلبلے - د عندليب جمع | علف : واښه - بوس |
| عنا : تکليف - سختی . | عقوبت : عذاب - |
| عزیٰ : د يو بُت نوم دے - | علجل : تلوار کوونکے - تُندی کوونکے |
| عاطفت : مهربانی - پرورش | عقر : ذبحه کول - |

# غ

| | |
|---|---|
| غول : ديو - پيرے | غش : کوټ - ميل - بيهوشی |

غبرا = مزکه
غولک = ځکله - دَ روپو جمع کولو صندق
غمام = سپینه وریځ - سپنج - یخ
غوندی = توټی - مسخرې کول
غِیاض = غصه ناک
غصن = څانګه

غنجاب = اوبه
غریق = ډوب
غوله = شیطانه
غلیواز = ټپوس
غُزمه = روشندان -
غماض = چغل خور - دَ سترګے اشاره -

# ف

فخور = خوشبویه
فرقان = قرآن شریف
فواد = زړه - روح

فوابج = خوشبویانے
فلاح = خلاصی
فایحه = خوشبوئ

# ک

کار = کانړیزه زمکه
کبلی = دَ هوسه بچے
کیکان = بانړه
کلاب - سپی
کانچه = اوکانډکه - اوکرېد

کودکی = ورو کوالے
کتان = ریښمنے جامے
کبود = آسمانی رنګ
کهرُبا = یو قسم کانړے چه وابنه را کاږی -

کودرے = تیکوے

کنشته = منډر

کرنګ = آس

کوړ = یو مرض دے

کاخ = محل

کیفی = مست

کذب = دروغ

کوس - نغاره - ډمامه

کنګل = ډال -

کیل = لوبه - نازونخره -
جماع - اختلاط

کعبتین = ګیټۍ

کاغ = اوړ

کنګرو = مناره

کستیر = دَ زیارت کاکا صاحب
نوم دے - (کستیر ګل)

کندک = ټوټے - رمه

کاهش = تکلیف تیرول

# ق

قفا = شا

قرابات = خپلوان

قساوت = سختی -
دَ زړه کلکوالے

قط = په ډډه

قطط = کالګوتی

قصاص = امزرے

قفس = پنجره

قیاب = ګنبتونه - برجونه

قاز = یو مارغه دے

قلاده = امیل

قصب = پریکول - نیزه -

قرنا = تورید - سُرنا

قلاب = اوړیدلے

قابوچی = دربان - کمینه
خودغرض

قاب = مقدار - فاصله
موافق

# ک

کلمر = نمر پرست
کستته = شکسته ۔ مات
کیتی = دُنیا ۔ نړۍ
کریت = کرید ۔ ژړا

کیو = دیو پهلوان نوم دے۔
کهنه = کالی ۔ زیور
کنده = دعوه ۔ پرتوغابس
کذاف = دروغ ۔ فخر ۔ بیهوده

# ل

لون لون = قسما قسم
لن ترانی = ما نه دے لیدلے
لاخ = کا نیزه زمکه۔ کار
لادغر = ایسار ۔ پخوانی
لکنتا = ژبه نیستل ۔

لاطائل = بے فائدے ۔ لنډ
لاهه = فائده ۔ مطلب
لبیب = هوښیار
لابه کری = خوشامندکری۔ دهوکه
لوزینه = خوږ شے

# م

مفتخر = فخر کوونکے
مسعود = سعادتمند
ملیا = وصل ۔ یوځائے کول

مغفر = خود
مکلل = جراو
مساواء برابری

مصاحب = ملگری
مرغول = تاویدلے.
پیچ درپیچ -
محک = کسوټیه
ماحضر = چه حضر تیار وی
مندیل = پټکے
منقح = صفا -
مفطور = پیدا
مُستقر = دَ قرارئ ځائے
مُظنه گمان
مسالت = سوال
مُضل = گمراه
مملو = ډک - پُر
مساء = ماښام
معذب = عذاب شوے
معاتب = شرمندگی -
عتابونه
مؤقر = باعزت
مشکیرک = یو مارغه دے
چه منبے خوری -
مسرفه = فضول خرچه

منال = سامان
منفعله = شرمنده
محسود = چه چاسره دشمنی شوے
وی -
مشاطه = نائی کنه
مداد = سیاهی
مباهی = یو تر بله فخر کول -
مناه = منع
مصیر = روان
مرفوع = بالا - اوچت
مکروب = غم رسیده - غمژن
مسلوب = سلب شوے.
زایل شوے
مطعون = کنځلے شوے -
مژونه = کډورئ - پسونه
مبعوث = مقرر شوے
مبتهج = خوشحال
مغلاج = پنډوس
مباح = جائز - روا
مُعتکف = عبادت دَ پاره
گوشه نشین -

معتاد = عادت

ملاذ = خوش

معاذ = پناه ګاه

مُل = شراب

مواس = غمخوار

من = ذره

ماص = رودونکے

مناص = ځائے د خلاصی

مرتاض = مشق کوونکے ۔ ریاضت کوونکے

مبسوط = پورته ۔ اوچت

مخطوط = کیلے شوے ۔ کرښے شوے

ملفوظ = لوستے شوے

ملحوظ = چه خیال یے اوساتلے شی

متعوظ = چه وعظ ورته شوے وی

مضاف = اشاره کوونکے

مصاف = صف بندی ۔ جنګ

محرور = ګرم ۔ سوے

ماجور = چه ماته اجور ورکړے شی

مُعرّا = خالی

معید = تیار

مُطرا = ښایسته ۔ ښکلے

مُشخص = معین

مزعفر = زیړ

منهزم = تښتیدونکے

موتا = مرګ

مُزوّر = ټګ ۔ دهوکه باز

محزون = غمژن

متمکن = میشته

منال = مال

ملون = رنګارنګ

مهتر = سردار

مجن = ډال

ملتفت = نظر کوونکے

مقامر = جوارګر

مهرګان = د مني موسم

محقر = سپک ۔ کمینه

محاضر = ښکاره جاره ۔ مقابله

منقلبه = اپوته ۔ اوړیدلے

مطر = باران

مُشبّک = سورے سورے. جالیدار
منکشف = ښکاره
مدن = ښهر
مطایب = ټوقې
معاتب = شرمنده
مفرح = خوشحاله
مهدمه = کونتره
مخیر = اختیارمند
مفتوح = پرانیستې شوے - فتح شوے.
مشروح = بیان شوے.

منوال = سامانونه
منعدم = ورک
محن = غم
مرتشی = رشوت خور
منجی = خلاصونکے
محق = په حق ولاړ
مبطل = په پړه تېنګ
مُکدر = خړ
مورد = ځاے د راتلو
مخلد = همیشه - داخل
مانوبو = خاوره
مذبوح = حلال شوے.

## ن

ناوک = غشے
نصفت = عدل
نخوت = کبر - غرور
نائره = لمبه - شُغله
نفرین = لعنت ملامت
نحس = منحوس

نیسان = وریځه
نوید = زیرے
نثار = بنجه
ناصیه = قسمت - تراق
ناهید = زهره ستورے
نتلے = لوټ شوے

نایه = شپیلۍ
نحستین = آګاهو. پروبې
نمط = رنګین فرش - بستره
وضع - قطع
نوائب = تکالیف
نیر = ستر

نهیب = سخت آواز
نګبتي = بدبختي
ناهنجار = ناموافق
نقره = سپین زر
نار = د نډر

# و

وغا = جنګ جګړه
ورد = ګلاب
واژګونه = واژګونې
وه لیښن = کوچ - تپیدل
وزر = ګناه - بار
واهي = دغموا و بوسو
ګډ وډ دیرې.

ورکیو = مني
واف = بلبل
وثاق = وعده

وام = مزکه - پنځه
وضوح = ښکاره
وقاص = ختیا مانو ونکي

# ه

ها = اګه - وې
هنود = هندوان
هامه = ګکري

هرام = زور
هبا = ګرد وغبار.
ذرې

| | |
|---|---|
| هجا = هجو- سپکاوے | هموم = غمونه |
| هزار = بلبل- ذَششتی گل | همال = مهمل- بیکاره |
| هاله = شپول- حلقه | هنک = نیت |
| هبوط = بشکته کیدل- | هیزم = خشاک |
| نزول | هیجا = جنګ |

# ی

| | |
|---|---|
| یُوح = ژوندون | یاوه = بے هوده خبرے |
| یغوث = دَیو بُت نوم دے | یساول = چوبدار- محافظ |
| یانه = یُون- رفتار | یوغ = جغ |

شاهین برقي پریس پشاور.          کاتب عبدالقاسم موسیٰ زی

# غلطنامه

| صفحه | شعر | غلط | درست |
|---|---|---|---|
| ۲ | ۱۲ | خیره | څهره |
| ۱۰ | ۱۱ | وژنی | وژنې |
| ۱۷ | ۲ | طغیان | طُغان |
| ۳۳ | ۱ | سعور | ستور |
| ۴۹ | ۳ | ناسره | نائره |
| ۵۰ | ۶ | سنجر | خپسر |
| ۸۲ | ۵ | بیدا | پیدا |
| ۸۵ | ۵ | که لیا | لیا |
| ۱۲۷ | ۱۴ | تاره | ناره |
| ۱۲۹ | ۱۰ | غَص | غُصن |
| ۱۳۸ | ۴ | پسندلو | پهندلو |
| ۱۴۳ | ۶ | جبانو | جبالونو |
| ۱۷۶ | ۱۳ | ماو | ماوے |

| صفحه | شعر | غلط | درست |
|---|---|---|---|
| ۱۸۸ | ۱۱ | غمزه | غمزده |
| ۱۹۱ | ۱۰ | ولید | ولید مے |
| ۲۰۴ | ۸ | حرمۓ | چه ۓ |
| ۲۰۷ | ۹ | پهداوے | په داووۓ |
| ۲۰۷ | ۱۲ | څنې | ښځې |
| ۲۱۴ | ۳ | مهرئه | مهرے |
| ۲۱۴ | ۱۱ | دګوزنګ | دګورزنګ |
| ۲۱۷ | ۱۱ | حضر | حذر |
| ۲۲۱ | ۳ | نهاګ | نهنګ |
| ۲۳۶ | ۱۳ | تر | ترِے |
| ۲۴۱ | ۱۱ | ماو | ماوے |
| ۲۵۰ | ۹ | مان | مات |
| ۲۹۶ | ۱۴ | چه سحر | څه سحر |
| ۳۳۱ | ۱۷ | دِ اروال توښۍ ګوته | دِ اګوان تومن ۓ لُوت |
| ۳۳۲ | ۱۳ | مطلب.... | مطلب چه |
| ۳۵۳ | ۶ | وینم..... | وینم په |
| ۳۶۳ | ۶ | په سماله | په سمالۀ |
| ۳۸۹ | ۱۹ | اَهَو | آهوؤ |

| صفحه | شعر | غلط | درست |
| --- | --- | --- | --- |
| ۳۸۹ | ۳۰ | دور | ډور |
| ۳۹۱ | ۱۰ | خشکله | څشکله |
| ۴۴۲ | ۲۰ | خښ | خس |
| ۴۹۲ | ۱ | چه | څه |
| ۵۱۲ | ۱۶ | نسم دے | له سم دے |
| ۵۷۶ | ۵ | نه | نهٔ |